د نوې دموکراسۍ په اړه
لیکوال: مائوتسه‌دون
ژباړونکی او ډیجټال خپرونکی: محسن خپرندویه
بریښنالیک: mohsinpubs@gmail.com
وبلاگ: http://mohsinpubs.blogspot.com
د خپروني نیټه: د ۱۳۹۸ کال د زمری ۷مه (۲۹ جولای ۲۰۱۹)

انتشارات محسن
Mohsin Publications

د محسن خپرندویه د یو شمیر افغان انقلابیانو له لوري جوړه شوه چې د مارکس، انګلس، لنین، ستالین، مائوتسه‌دون او نورو انقلابي او مخکښو لیکوالانو آثارو چاپ او خپرول یې د خپل کار په لومړیتوب کې نیولي دي.



# شهید شعیب بابړی

دغه ژباړه په ځانګړې توګه «د افغانستان د خلکو انقلابي ګروه» (وروسته د افغانستان د خلاصون سازمان) غړي شهید شعیب بابړی ته، چې د ۱۳۵۸ م کال د غويي په میاشت کې، د «د روس مریان د خپل اسارت لمړي کلیزه لمانځي» تر عنوان لاندې شپنيلیک (شبنامې) په اړوند، سره له نورو ۴۳ کسانو، د کابل په پولي‌تخنیک کې ونیول او د پلچرخی په پولیګون کې په شهادت ورسول شو، وړاندې کیږي.

## لړلیک:

## ۱ ـ چین په کوم لور روان دی؟

د مقاومت د جګړې له پیله، زمونږ خلک د شور او شوق، وجد او د ښادۍ په چاپېریال کې ژوند کوي، ټول فکر کوي، چې د وتلو لار پیدا شوه، او د هیلو غوټۍ یې په مخونو راغوړېدلي. خو پدې وروستیو کې د جوړجاړي او کمونیزم ضد کریغو او غبار فضا له سره ډکه کړې او د ټول هیواد خلک یې له سرڅرخۍ او ګډوډۍ سره مخ کړي دي. لومړني کسان چې د هغې تر اغیزې لاندې راځي، ځوان فرهنګیان او محصلین دي، چې د پیښو پر وړاندې ښورا حساس دي. دا دی، بله پلا دا پوښتنې رامنځ ته کېږي: څه باید وکړو؟ چین په کوم لوري روان دی؟ نو له همدې کبله شاید ګټه ور وي، چې د «چین فرهنګ»[۱] په نوم مجلې خپریدو په اړوند د چین سیاسي او فرهنګي بهیرونه روښانه شي. زه په فرهنګی مسایلو دومره نه پوهیږم، غواړم دا مسایل مطالعه کړم، خو لا د کار په پیل کې یم. له نیکه‌مرغه په ین ان کې ډېرو ملګرو د ډیرو لیکنو په ترڅ کې دا موضوع په پراخه توګه څیړلی ده او زما شډله او زیږه لیکنه کېدای شي یوازې د پیل کرښه وګڼل شي. د ټول هیواد مخکښو فرهنګي کارکونکو لره زما لیکنه شاید د حقیقت یوه څنډه په نښه کړي او د هغې لوټې په څیر ده، چې هوا تا ګوزار شوې، تر څو دوی خپلې مرغلرې عرضه کړي، او مونږ هیله من یو چې په بحث کې د دوی په ګډون سره هغو صحیح پایلو ته ورسیږو، چې د ولس اړتیاوو ته ځواب ووایې. علمي تګلار «د واقعیتونو پر بنسټ د حقیقت پلټنې» څخه عبارت ده؛ «ځان له تیروتنې څخه سوا انګېرل» او «د استاذۍ کانې کول» هغه کبرجنې لارې چارې دي چې، له کومې ستونزې سره هم مرسته نه کوی. زمونږ د ولس بدمرغې له بریده وتلې دي؛ یوازې علمي لارې او د دندې پېژندنې حس دی، چې کولای شي د آزادۍ په لور زمونږ د ولس لارښود وګرځي. حقیقت یوازې یو دی، خو ددې لپاره چې پوه شو چا دغه حقیقت موندلی دی، باید عینی پراتیک بنسټ وټاکو، نه ذهني اپلتې. یوازې د میلیونونو وګړو انقلابی پراتیک د حقیقت کچونګ (سنجش) دی. زما په اند د «چین فرهنګ» مجلې په خپرولو کې زمونږ تګلار باید داسی واوسي.

## ٢ ـ مونږ غواړو نوی چین جوړ کړو

مونږ کمونستانو اوږده کلونه نه یواځې د چین سیاسي او اقتصادي، بلکه فرهنګي انقلاب لپاره هم مبارزه کړې ده؛ ددې مبارزې اصلي موخه د چین د ولس لپاره د نوې ټولنې او نوي دولت جوړول دي. دغه نوې ټولنه او نوی دولت به نه یواځې د نوي سیاست او نوي اقتصاد، بلکه د نوي فرهنګ خاوند به هم وي. په بله وینا مونږ غواړو چین، چې له سیاسي پلوه ځپل شوی او له اقتصادي پلوه د زبېښاک سره لاس او ګریوان دی، په داسې چین بدل کړو، چې له سیاسي پلوه خپلواک او له اقتصادي پلوه ښیراز وي؛ سربېره پر دې مونږ غواړو چین، چې د زاړه فرهنګ د واک په پایله کې ناپوه او وروسته پاتې شوی، په داسې چین بدل کړو، چې د نوي فرهنګ تر ولکې لاندې روښانګره او پرمختللی وي. په لنډ ډول لنډه خبره دا، چې مونږ غواړو نوی چین جوړ کړو. په فرهنګي ډګر کې زموږ موخه، د چین د ولس د نوي فرهنګي بنسټ ایښودل دي.

## ٣ ـ د چین تاریخي ځانګړتیاوې

مونږ غواړو د چین د ولس د نوي فرهنګ بنسټ کېږدو، خو دغه نوی فرهنګ باید څه ډول یو فرهنګ وي؟

یو ټاکلی فرهنګ (چې په ایډیالوژیکي توګه په پام کې نیول کېږي) د یوې ټاکلې ټولنې د سیاست او اقتصاد آزانګ (انعکاس) دی، او دغه فرهنګ په خپل وار په سیاست او اقتصاد لوی اغیز او نفوذ لري؛ اقتصاد بنسټ جوړوی، پداسي حال کې چې سیاست د اقتصاد لنډ بیان دی. دغه له یوې خوا د فرهنګ او بلې خوا سیاست او اقتصاد تر منځ اړیکو او برسېره پر دې د سیاست او اقتصاد تر منځ اړیکو په اړوند زمونږ بنسټیز نظر دی. په دې توګه فرهنګ په یوې ټاکلې بڼه لومړی، د سیاست او اقتصاد په وسیله یوه ټاکلې بڼه مومي او یواځې هغه وخت دی، چې په سیاست او اقتصاد اغیز او نفوذ اچوي. مارکس وایي: «دا د انسانانو شعور ندی، چې د دوی هستي ټاکي، بلکه اپوټه (برعکس) دا د دوی اجتماعي هستي ده، چې د هغو شعور ټاکي.»[٢] دی بیا وایي: «فیلسوفانو نړۍ یواځې په بېلابېلو بڼو تعبیر او تفسیروله، حال داچې مطلب د هغې د بدلولو په

سر دی.»[۳] دا دي هغه علمي احکام، چې د لومړي ځل لپاره یې د بشر په تاریخ کې د شعور او هستي تر منځ اړیکې په سمه توګه حل کړي او د آزانګ (انعکاس) دینامیک او انقلابي تئوری، بنسټیز نظریات جوړوي، چې وروسته یې د لنین لخوا په ژوره توګه وده او بشپړتیا وموندده. کله چې مونږ د چین په فرهنګ پورې تړلو پوښتنو په اړه بحث کوو، دغه بنسټیز نظریات باید د هېرولو په لاس و نه سپارو.

د دې تګلارې پر بنسټ ډېره روښانه ده، چې د چین ولس د زاړه فرهنګ ارتجاعي عناصر، چې مونږ یې راپرځول غواړو، د چین د ولس له زاړه سیاست او د زاړه اقتصاد څخه نه جلا کېدونکي دي، په همدې توګه د چین ولس نوی فرهنګ چې مونږ یې جوړول غواړو، د چین ولس له نوي سیاست او نوي اقتصاد څخه جلا ندی. د چین ولس زاړه سیاست او زاړه اقتصاد د چین ولس د زاړه فرهنګ ستنې جوړولې، پداسې حال کې چې د چین ولس نوی سیاست او نوی اقتصاد د چین ولس د نوي فرهنګ ستنې جوړوي.

د چین ولس له زاړه سیاست او زاړه اقتصاد څخه مطلب څه دی؟ او د چین ولس له زاړه فرهنګ څخه مطلب څه دی ؟

د چین ټولنه د جو و چینګ له لړیو راهیسې فیوډالي ټولنه ده، چې سیاست یې فیوډالي سیاست او اقتصاد یې فیوډالي اقتصاد ؤ. او واکمن فرهنګ چې د همدې سیاست او اقتصاد آزانګ (انعکاس) دی، فیوډالي فرهنګ ؤ.

په چین باندې د بهرنی، پانګوالی، له یرغله او د چین په ټولنه کې د پانګوالو عناصرو له تدریجي ودې راهیسې، چین په تدریج سره په مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي ټولنه بدل شو. نن ورځ په چین کې، د جاپان تر نیواک لاندې سیمې یوه مستعمره او د ګومیندان تر واک لاندې سیمې په اصولي توګه نیمه مستعمره ټولنه ده او په دواړو برخو کې، څه د جاپان د نیواک لاندې سیمې او څه د ګومیندان تر واک لاندې سیمې هسې ټولنې جوړوي، چې په هغې کې فیوډالي او نیمه فیوډالي نظام برلاسی دی. دغه د چین د ټولنې اوسنی، ځانګړتیا ده، دغه د چین اوسنی وضعیت دی. پدې ټولنه کې مسلط سیاست او اقتصاد مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي سیاست او اقتصاد دی او مسلط فرهنګ هم، چې ددغه سیاست او اقتصاد آزانګ دی، هم مستعمره، نیمه

مستعمره او نیمه فیوډالي فرهنګ دی.

زمونږ انقلاب سم د دغو مسلطو سیاسي، اقتصادي او فرهنګي ډولونو پر ضد دی. هغه څه چې مونږ یې غواړو راوپرځوو، سم همدا زوړ مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي سیاست او اقتصاد دی او همدا زوړ فرهنګ دی، چې د هغه په چوپړ کې دی. او هغه څه چې مونږ یې غواړو رامنځته کړو، د دغو مقابل اړخ یانې د چین د ولس نوی سیاست، نوی اقتصاد او نوی فرهنګ دی.

نو د چین د ولس نوی سیاست او نوی اقتصاد څه دی؟ او د چین د ولس نوی فرهنګ څه دی؟

د چین انقلاب د خپل تاریخ په اوږدو کې باید له دوو پړاوونو تیر شي: لومړی پړاؤ، دموکراتیک انقلاب او دویم پړاؤ سوسیالیستي انقلاب، دغه دوه پړاوونه د هغه انقلاب دوې پروسې دي، چې د خصلت له پلوه یو له بل سره توپیر لري. هغه څه چې مونږ یې دموکراسي بولو، نور د زړې دموکراسۍ له مقولې سره اړیکه نلري، دا نوره زړه دموکراسي نده، بلکه د نوې دموکراسۍ له مقولې سره اړه لري ـ دا نوې دموکراسي ده.

له دې کبله په یقین سره ویلی شو، چې د چین د ولس نوی سیاست همدا د نوې دموکراسۍ سیاست دی، د چین د ولس نوی اقتصاد هم دا د نوې دموکراسۍ اقتصاد، او د چین د ولس نوی فرهنګ هم دا دنوې دموکراسۍ فرهنګ دی.

په اوسنۍ شیبه کې دغه د چین د انقلاب تاریخي ځانګړتیاوې دي. هر ګوند او سیاسي ډله، او هر وګړی، چې د چین په انقلاب کې ګډون وکړي، که چېرې په دغو ځانګړتیاوو پوه نه شي، نه د انقلاب لاربنوونه کولای شي، او نه هم هغه د بریا منزل ته رسولای شي، او د خلکو لخوا به لیرې او د یو بې ارزښته موجود په څیر کولای شي یوازې د جلاتوب په څنډلي کې وژړاي او کوکې ووهي.

### ۴- د چین انقلاب د نړیوال انقلاب یوه برخه ده

د چین د انقلاب تاریخي ځانګړتیا د هغه ویش په دوو پړاوونو دی: دموکراسي او سوسیالیزم. په لومړۍ مرحله کې موضوع د دموکراسۍ عامه مانا نده، بلکه خبره د دموکراسۍ په چیني ډول، د دموکراسۍ نوي او ځانګړي ډول باندې ده، یانې په نوې

دموکراسۍ باندې ده. خو دا تاریخي ځانګړتیا څرنګه جوړه شوې ده؟ آیا دغې ځانګړتیا سل کاله وړاندې هم شتون لاره یا دا چې په وروستیو کې رامنځته شوې ده؟

کافي ده، چې لږ د چین او نړۍ د تاریخ تکامل ولولو، تر څو وپوهیږو، چې دغه ځانګړتیا د (آپینو) له جګړې وروسته سم لاسي نده رامنځته شوی، بلکه له لومړۍ نړېوالې امپریالیستي جګړې او د اکتوبر له انقلابه څخه وروسته یې دغه بڼه غوره کړې. او د هغې د رامنځ ته کېدو بهیر څېړو. د چین د اوسنۍ ټولنې د مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي ځانګړتیا څرګنده پایله دا ده، چې د چین انقلاب باید په دوو پړاوونو وویشل شي: لومړی پړاؤ، د دې مستعمرې، نیمه مستعمرې او نیمه فیوډالي ټولنې بدلون په خپلواکه او دموکراتیکه ټولنې؛ دویم پړاؤ، د انقلاب پر مخ وړل او د سوسیالیستي ټولنې بنسټ ایښودل. اوس مهال، د چین انقلاب له لومړني پړاؤ څخه تیریږي.

د لومړني پړاؤ د چمتوالي لړ د تریاکو له جګړې (۱۸۴۰) څخه پیل شو، یانې له هغه راهیسې، چې د چین ټولنې له فیوډالې ټولنې څخه نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي ټولنې ته بدلون پیل کړ. وروسته د تای پین خوځښت، د فرانسې او چین جګړه، د چین او جاپان جګړه، د ۱۸۹۸ ریفورمیستي نهضت، د ۱۹۱۱ انقلاب، د مې (میاشتې) د ۴مې خوځښت، د شمال په لور لښکرو وړل، د ارضي انقلاب جګړه او په پای کې د جاپان پر ضد د مقاومت اوسنۍ جګړه مخې ته راغلل. دغه زیات شمیر دورې په ټوله کې یوه بشپړه پیړۍ نیسي او په ټاکلې مفهوم لومړی پړاؤ جوړوي.

ددغه دورو په ترڅ کې د چین خلکو په بېلابېلو موکو کې او په مختلفو کچو دغه لومړنی پړاؤ سرته رسولی او د امپریالیزم او فیوډالي ځواکونو پر ضد یې، د خپلواک او ولسواکه ټولنې د جوړښت او لومړني انقلاب د سر ته رسولو لپاره مبارزه کړې ده. د ۱۹۱۱م انقلاب په لا بشپړه مانا ددغه انقلاب پیل دی. دغه انقلاب د ټولنیزې ځانګړتیا له نظره بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب دی، نه سوسیالیستي ـ پرولتاریایي انقلاب. دغه انقلاب لا تر اوسه ندی تر سره شوی او لا تر اوسه ډېرو هڅو ته اړتیا لري، ځکه چې غلیمان یې لا ډېر ځواکمن دي.

کله چې ډاکټر سون یاتسین ویل:«انقلاب لا تر اوسه پای ته ندی رسیدلی، زما ملګري باید په همدې توګه مبارزې ته دوام ورکړي»، همدغه بورژوا ـ دموکراتیک

انقلاب یې په پام کې لاره.

له دې سره دچین بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب، د لومړنۍ نړیوالې امپریالیستي جګړې(۱۹۱۴) او د ځمکې پر یو پر شپږمې برخې د سوسیالیستي دولت تاسیس چې د روسیې د ۱۹۱۷م انقلاب پایله وه، بدلون سره مخ دی.

تر دې پیښو وړاندې، د چین بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب په زاړه نړیوال بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب پورې اړه لرله او د زاړه نړیوال بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب برخه وه.

وروسته له دې پیښو، دچین بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب د نوې بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب له مقولې سره تړاو پیدا کړ او په انقلاب کښې د مرچه‌ایز تړاؤ له نظره د نړیوال پرولتاریایې ـ سوسیالیستي انقلاب یوه برخه وګرځېده.

ولې؟ ددې لپاره چې لومړنۍ نړیوالې امپریالیستي جګړې او لومړني بریالي سوسیالیستي انقلاب، د اکتوبر انقلاب، د نړۍ ټول تاریخي بهیر ته بدلون ورکړ او د نړۍ په تاریخ کې د نوي عصر راختل اعلان کړ. پداسې یوه دور کې، چې د بورژوازۍ نړیواله جبهه د ځمکې له یوې برخې(د ځمکې تر شپږو یوې برخې) څخه راپرځېدلې او په نورو برخو کې خپل وروستوالی په روښانه توګه څرګندوي، پداسې یوه دور کې چې نړیوالې بورژوازۍ پاتې برخه پر مستعمرو باندې له تکېې پرته خپل ژوند ته ادامه نشې ورکولای، پداسې دور کې چې سوسیالیستي دولت تاسیس شوی دی او خپل چمتووالی د ټولو مستعمرو او نیمه مستعمرو د آزادي غوښتونکو غورځنګونو څخه د ملاتړ لپاره اعلانوي، پداسې دور کې چې د بورژوازي هیوادونو پرولتاریا ورځ په ورځ د سوسیال ـ امپریالیستي او سوسیال دیموکرات ګوندونو له نفوذ څخه خلاصون مومې او خپل ملاتړ د مستعمرو او نیمه مستعمرو له خپلواکۍ غوښتونکو غورځنګونو څخه اعلانوي، په داسې دور کې، چې انقلاب په هر مستعمره او نیمه مستعمره هیواد کې د امپریالیزم پر ضد، یانې د نړیوالې بورژوازۍ یا نړیوالې پانګه والۍ پر ضد راولاړ شي، دغه انقلاب نور د زاړه نړیوال بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب په مقولې پورې نه، ګواکې د نوې مقولې سره تړاو لري؛ دغه انقلاب تر دې وروسته نور د زاړه نړیوال بورژوایي یا پانګوال انقلاب برخه نده، بلکه د نوي نړیوال انقلاب، یانې د نړیوال پرولتاریایې ـ سوسیالیستي انقلاب برخه ده. دغه انقلابي مستعمرې او نیمه مستعمرې نور نشې کېدلای د نړیوالې بورژوایي انقلابي ضد جبهې

متحدین وشمیرل شي؛ دوی نور د سوسیالیزم د نړیوالې انقلابي جبهې په متحدینو بدل شوي دي.

سره له دې، چې په مستعمرو او نیمه مستعمرو کې دا ډول انقلاب، په لومړني پړاؤ یا لومړني ګام کې د ټولنیزې ځانګړتیا له پلوه اصولن لا بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب دی او عیني غوښتنې یې د پانګوالۍ د ودې لپاره د لار پرانیستلو په لور حرکت کوي، سره له هغه دغه انقلاب د زاړه انقلاب له ډوله ندی، چې بورژوازي یې لارښوونه کوي او موخه یې د بورژوایي ټولنې او بورژوایي دیکتاتوري دولت رامنځ ته کول دي، بلکه نوی ډوله انقلاب دی، چې پرولتاریا یې لارښوونه کوي او موخه یې په لومړي ګام کې، د نوې دموکراسۍ ټولنه او د ټولو انقلابي طبقو د ګډې دیکتاتورۍ د دولت ټینګښت دی. له دې کبله دغه انقلاب د سوسیالیزم د لا پراخې ودې لپاره لار پرانیزي. دغه انقلاب په خپل پرمخ تګ کې د هغه بدلونونو له امله، چې د دښمن په لښکرو او د متحدینو په کړښو کې رامنځ ته کېږي، په څو دورو ویشل کېږي، خو د هغه بنسټیزه ځانګړتیا پرته له بدلونه په خپل ځای پاتې کېږي.

دغه ډول انقلاب امپریالیزم په بنسټیزه توګه د ضربې موخه ګرځوي او له دې کبله یې امپریالیزم نه مني، بلکه د هغه پر ضد مبارزې ته راپورته کېږي. خو دغه انقلاب د سوسیالیزم له خوا د منلو وړ ګرځي او سوسیالیستي دولت او نړیواله سوسیالیستي پرولتاریا یې مرسته کوي.

له همدې کبله ده، چې دغه شان انقلاب نشي کېدلای، چې د نړیوال سوسیالیستي ـ پرولتاریایي انقلاب په یوه برخه بدل نشي.

«د چین انقلاب د نړیوال انقلاب یوه برخه ده»، دغه سم تز د چین ستر انقلاب له لومړني پړاؤ راهیسې، په ۱۹۲۴-۱۹۲۷ کلونو کې وړاندې شوی. دغه تز د چین د کمونستانو لخوا طرح شو او د ټولو هغو کسانو لخوا د منلو وړ وګرځیده، چې هغه وخت یې په امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد مبارزه کې ګډون درلوده. سره له دې د دغې تئورې اهمیت په هغو ورځو کې په ښه ډول څرګند نشو، او له دې امله د خلکو درک له دغې مسلې لا مبهم و.

دغه «نړیوال انقلاب» نور زوړ نړیوال انقلاب ندی ـ د زاړه نړیوال بورژوایې انقلاب

دوران مودې دي، چې سر ته رسيدلی، بلکه يو نوی نړيوال انقلاب، نړيوال سوسياليستي انقلاب دی. په همدې ډول له «برخې» نه موخه، نور د زاړه نړيوال بورژوايي انقلاب برخه نده، بلکه د نوي سوسياليستي انقلاب برخه ده. دغه خورا لوی بدلون دی، داسې يو بدلون چې بيلګه يې نه د چين په تاريخ کې او نه هم د نړۍ په تاريخ کې تر سترګو شوې.

دغه سم تز چې د چين د کمونستانو لخوا وړاندې شوی، د ستالين له تيورۍ څخه يې سرچينه اخيستې.

ستالين په ۱۹۱۸م کال کې د اکتوبر انقلاب د لومړنۍ کليزې په اړوند، په يوه رساله کې داسې وليکل:

د اکتوبر لوی نړيوال انقلاب اهميت پدې کې دی چې دغه انقلاب

(۱) د ملي مسئلې بريد ته پراختيا ورکړې او په اروپا کې يې د ملي ستم پر ضد د مبارزې ځانګړې مسئله يې د امپرياليزم د منګولو څخه د ځپل شويو ولسونو، مستعمرو او نيمه مستعمرو د خلاصون په عامه مسئله بدله کړې ده؛

(۲) د دغه خلاصون لپاره يې پراخ امکانات او عملي لارې پرانيستلي او په دې توګه يې تر ډيره بريده د ختيځ او د لويديځ ځپل شويو ولسونو د خلاصون لاره آسانه کړې او هغوی يې د امپرياليزم پرضد بريالې مبارزې ګډ بهير ته راوکاږل؛

(۳) پدې توګه يې د سوسياليستي ختيځ او د بنديوان لويديځ تر منځ يو پل کښلی او د نړيوال امپرياليزم پر ضد يې د روسيې د انقلاب له لارې ختيځ پرولتاريا څخه د لويديځ ځپل شويو ولسونو پورې د انقلابونو يوه نوې جبهه رامنځ ته کړې ده.[۴]

د رسالې تر ليکلو وروسته ستالين څو څو ځله دغې تيورۍ ته وده او بشپړتيا ورکړې، چې په مستعمرو او نيمه مستعمرو کې انقلابونه له زړې مقولې جلا شوي او د سوسياليستي ـ پرولتاريايي انقلاب يوه برخه ګرځيدلي دي. دغه تيوري ستالين د يوې ليکنې په ترڅ کې، چې د ۱۹۲۵م کال د جون په ۳۰مه د هغه وخت د يوګوسلاوي ناسيوناليستانو سره د بحث په اړوند خپره شوه، په پوره غور او څرګندتيا سره تشريح کړې ده. دغه مقاله د «يو ځل بيا د ملي مسئلې په هکله» تر عنوان لاندې، د «ستالين د ملي مسئلې په هکله» کتاب کې، چې د جان جون شي لخوا ژباړل شوې، شامل کړای

شوې ده. پدې لیکنه کې لاندې برخه لولو:

سمیچ د ستالین لیکنې «مارکسیزم او ملی مسئله» په یوې برخې باندې استناد کوی، چې د ۱۹۱۲م کال په پای کې لیکل شوی ده. په دې برخه کې ویل کېږي، چې: «ملی مبارزه د پانګوالۍ د ودې په شرایطو کې د بورژوا طبقو په خپلو منځو کې مبارزه ده.» څرګنده ده، چې دی هڅه کوي، په دې وزله (وسیله) د خپل فرمول سموالي ته، چې د ملی غورځنګ اهمیت په اوسنیو تاریخی شرایطو کې بیانوی، اشاره وکړي. خو د ستالین لیکنه د امپریالیستي جګړي څخه تر مخه لیکل شوی ده، یانې هغه وخت، چې ملی مسئله د مارکسیستانو په نظر لا تر هغه مهاله د نړیوال اهمیت لرونکې نه وه، په هغه وخت کې، چې د برخلیک د ټاکلو حق په اړه د مارکسیستانو اساسی غوښتنه، د بورژوا - دموکراتیک انقلاب برخه ګڼل کېده، نه د پرولتاریایې انقلاب د یوې برخې په توګه. خندونکې به وی که ونه کتل شي چې، له هغه وخت راهیسې نړیوالې وضعې له ولې بدلون موندلی دی او جګړې له یوې خوا او په روسیې کې انقلاب له بلې خوا ملی مسئله له بورژا - دموکراتیک انقلاب له برخې څخه د پرولتاریایي – سوسیالیستي انقلاب په برخې اړولې ده. د ۱۹۱۶ کال اکتوبر په میاشت کې لنین په خپله لیکنه «د برخلیک ټاکلو حق په اړه د بحث انډول» کې ویلي، چې د برخلیک ټاکلو حق په اړه د ملي مسئلې اساسی ټکی نور د عمومي دموکراتیک غورځنګ یوه برخه نده، بلکه د عمومي پرولتاریایې - سوسیالیستي انقلاب نه بیلیدونکې برخه ګرځېدلې. زه نور د لنین او د روسیې د کمونیزم نورو استازو له وروستیو آثارو څخه د ملی مسئلې په اړه خبری نه رامنځ ته کوم. نو وروسته له دې ټولو د سمیچ استناد د ستالین جزوې په هغه برخې، چې د روسې بورژوا - دموکراتیک انقلاب په دوران کې لیکل شوې او اوس، چې مونږ د نوی تاریخی وضعې په پایله کې نوي عصر، د پرولتاریایې انقلاب عصر ته ګام ایښی ، څه مانا لرلای شي؟ د هغې مانا یوازې دا کېدلی شي، چې سمیچ له وخت او مکان څخه بهر، له ژوندي تاریخي وضعیت سره د هر ډول اړیکې نه بهر قول رانکلوي او په دې توګه د دیالکتیک لومړنې بنسټیزې تر پښنو لاندی کوي، دې ټکي ته له پام څخه سوا، چې په یوې تاریخي وضعې او حالت کې یو سم شئ کېدای شي په بلې تاریخي وضعې او حالت کې ناسم ثابت شي.

له دې ځايه څرګندېږي، چې دوه ډوله نړيوال انقلابونه شتون لري. لومړی ډول نړيوال انقلاب د بورژوازي يا پانګوالۍ له مقولې سره تړاو لري. د دغه ډول نړيوال انقلاب دور موده کېږي، پای ته رسيدلی؛ د دغه انقلاب دور هغه مهال سر ته ورسېده، کله چې په ۱۹۱۴م کې د لومړنی نړيوالې امپرياليستي جګړې اور ولګېده او په ځانګړې توګه کله چې په ۱۹۱۷م کې په روسيې کې د اکتوبر انقلاب پېښ شو. له هغه وخته راهيسې دويم ډول نړيوال انقلاب پيل شو ــ پرولتاريايي ـ سوسياليستي نړيوال انقلاب. د پانګوال هيوادونو پرولتاريا(کارګر) ددغه انقلاب عمده ځواک جوړوي او د مستعمرو او نيمه مستعمرو ځپل شوي ولسونه د هغو د ملاتړو په توګه ګڼل کېږي. دا اړينه نده، چې د ځپل شو يو هيوادونو کومې طبقې، کوم ګوندونه او کومې سياسي ډلې يا کوم شخصيتونه په انقلاب کې ګډون کوي، او دا هم اړينه نده چې دوی پدې ټکي پوهېږي او که نه او يا دوی هغه په ذهنې توګه درک کولای شي او که نه، خو تر هغو چې دوی د امپرياليزم پر ضد مبارزې ته را ولاړيږي، د دوی انقلاب د نړيوال پرولتاريايي ـ سوسياليستي انقلاب يوه برخه ده او دوی خپله د دغه انقلاب ملاتړي دي.

نن ورځ د چين انقلاب لا ډېر اهميت موندلی دی. نن ورځ مونږ هغه دوران ته رسيدلې يو چې په هغې کې نړۍ هره ورځ د پانګوال وټه‌ايز(اقتصادي) او سياسي بحرانونو له امله، په دويمې نړيوالې جګړې کې لا ژوره ډوبيږي، هغه دوران ته، چې شوروي اتحاد د سوسياليزم مرحلې نه  کمونيزم ته د اوښتو په حال کې دی او پدې توانيدلې، چې د امپرياليستي جګړې او د پانګوالې ارتجاع پر ضد مبارزې کې د پرولتاريا او ټولې نړۍ ځپل شويو ولسونو مشري او ملتيا وکړي، هغه دوران ته چې د پانګوالو هيوادونو پرولتاريا(کارګران) ځانونه چمتو کوي، تر څو پانګوالي ړنګه او د سوسياليزم بنسټ کېږدي، هغه دوران ته چې پرولتاريا، د بزګرو طبقه، روڼ‌آندي او د چين د وړې بورژوازۍ نورې برخې د چين د کمونيست ګوند تر مشرۍ لاندې په خپلواک لوی سياسي ځواک بدل شوي. آيا مونږ نن ورځ په داسې دوران کې نه بايد پدې عقيدې واوسو، چې د چين انقلاب نړيوال اهميت لا هم زياتوالی موندلی دی؟ زما له آنده مونږ بايد پدې عقيده واوسو. د چين انقلاب د نړيوال انقلاب لويه برخه ده.

سره له دې، چې د چين د انقلاب لومړنی پړاؤ(چې پخپله په زياتو وړو دورو ويشل

شوی) د خپلې ټولنيزې ځانګړتيا پر بنسټ د نوي ډول بورژوا - دموکراتيک انقلاب دی او لا پرولتاريايي ـ سوسياليستي انقلاب ندی، سره له دې له مودو مخکې د نړيوال پرولتاريايي - سوسياليستي انقلاب په يوې برخې بدل شوی دی او همدا اوس تردې پورته د دغه نړيوال انقلاب ستره برخه او د هغه لوی مل جوړوي. د دې انقلاب لومړنی ګام يا لومړنۍ مرحله مسلمن د چين د بورژوازۍ تر ديکتاتورۍ لاندې د پانګوالۍ ټولنې بنسټ ندی او کېدلای هم نه شي، بلکه د چين د ټولو انقلابي طبقو ګډې ديکتاتورۍ تر څېر لاندې، چې په سر کې يې د چين پرولتاريا دربدلې، د نوې دموکراسۍ د ټولنې په بنسټ سره پای مومې. او وروسته به انقلاب د دويم پړاؤ په لور، چې په چين کې د سوسياليستي ټولنې جوړښت دی، مخ په وړاندې لاړ شي.

دا ده د چين د اوسني انقلاب بنسټيزه ځانګړتيا، دا دی د وروستيو شلو کلو د نوي انقلابي بهيرلړۍ (د ۱۹۱۹م کال د مې مياشتې د ۴ خوځښت څخه راهيسې)، دا دی د چين د اوسني انقلاب ژوندی او ټاکلی مضمون.

## ۵ ـ د نوې دموکراسۍ سياست

د چين انقلاب په دوو تاريخي پړاؤونو ويشل کېږي، چې ددغه انقلاب لومړنی پړاؤ نوې دموکراسي ده، او د چين د انقلاب نوې تاريخي ځانګړتيا په همدې کې ده. دغه نوې ځانګړتيا د چين په کورنيو سياسي او اقتصادي اړيکو کې څنګه او په کوم ځانګړي ډول بيان مومي؟ لاندې مو ړ دا مسئله څرګندوو.

د ۱۹۱۹م کال د مې د ۴م له غورځنګ څخه مخکې (وروسته له دې، چې لومړۍ نړيواله امپرياليستي جګړه په ۱۹۱۴م کې او د ۱۹۱۷م په اکتبر کې د روسيې انقلاب رامنځته شول) د چين د بورژوا ـ دموکراتيک انقلاب سياسي لارښود د چين وړوکې بورژوازي او بورژوازي (د هغوې روڼآندي) وو. هغه وخت د چين پرولتاريا د يوه پوه او خپلواک طبقاتي ځواک په توګه سياسي ډګر ته راغلې نهوه، بلکه د وړوکې بورژوازۍ او بورژوازۍ تر شا تلونکو په توګه يې په انقلاب کې ګډون لاره. د چين د پرولتاريا وضعه د ۱۹۱۱ م په انقلاب کې پدې ډول وه.

د مې میاشتې د ۴م له خوځښت  څخه وروسته، سره له دې چې د چین ملي بورژوازۍ په انقلاب کې خپل ګډون ته دوام ورکړ، د چین د بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب سیاسي مشر نور بورژوازي نه وه، بلکه د چین پرولتاریا وه. د چین پرولتاریا پدغه وخت کې د خپل پوخوالي او د روسیې د انقلاب د اغیزې له امله په چټکۍ سره په یو پوه(آګاه) او خپلواک سیاسي ځواک بدل شو. دا د چین کمونیست ګوند ؤ، چې د «مرګ پر امپریالیزم» ناره یې پورته کړه او د چین د بورژوا ـ دموکراتیک ګرد انقلاب بشپړه ګړنلار یې اعلان کړه، او همدا د چین کمونیست ګوند ؤ، چې ځان ته یې یواځې ارضي انقلاب ترسره کړ.

له هغه ځایه چې د چین ملی بورژوازي، د یوه مستعمره او نیمه مستعمره هیواد بورژوازي ده، چې د امپریالیزم تر ناتار لاندې ده، ان د امپریالیزم په دوران کې، په ټاکلو دورو کې په ټاکلې کچه د بهرني امپریالیزم ، د بروکراتانو د دولتونو او د خپل هیواد پوځي دیکتاتورانو پر ضد (چې د وروستیو ډلو پر ضد د مبارزې بیلګې یې کولای شو د ۱۹۱۱م کال انقلاب او شمال لوري ته په لښکروړلو کې وموندو) خپل انقلابي کېفیت ساتي او کولای شي له پرولتاریا او وړوکې بورژوازۍ سره د ګډ دښمن پر ضد، چې چمتو ده له هغو سره مبارزه وکړي، یوځای شي. د چین بورژوازۍ او د پخوانۍ روسیې د امپراتورۍ بورژوازۍ توپیر په همدې کې دی. له هغه ځایه چې د پخوانۍ روسیې امپراطوري میلیتاریستي ـ فیوډالي امپریالیزم ؤ، چې په نورو هیوادو یې تیری کاوه، د روسیې بورژوازي له هر ډول انقلابي کېفیت څخه سوا وه. هلته د پرولتاریا دنده د بورژوازۍ پر ضد مبارزه وه او نه له هغې سره یووالی. خو د چین ملي بورژوازي په ټاکلو دورو کې او په ټاکلې کچه د انقلابي کېفیت درلودونکې ده، ولې چې چین مستعمره، نیمه مستعمره او د تیري قرباني یو هېواد دی. دلته د پرولتاریا دنده دا ده، چې د ملي بورژوازۍ دغه کېفیت له پامه ونه غورځوي او له هغو سره د امپریالیزم او د بوروکراتانو دولتونو او د پوځي دیکتاتورانو پر ضد متحده جبهه جوړه کړي.

خو په عین وخت کې له دې امله چې د چین ملي بورژوازي د مستعمره او نیمه مستعمره هیواد بورژوازي ده او په پایله کې له اقتصادي او سیاسي پلوه ډېره کمزورې ده، د یو بل ډول کېفیت درلودنکې هم ده، یانې د انقلاب له دښمنانو سره جوړجاړی.

د چین ملي بورژوازي ان هغه مهال چې په انقلاب کې ګډون کوي، ګروهه (مایله) نده، چې له امپریالیزم څخه اړیکې په یو وار پرې کړي، سربیره پر دې دغه بورژوازي په کلیو کې د زبېښاک سره د مالکانه سود له لارې نږدې اړیکه لري، له دې کبله نه غواړي او یا نشي کولای امپریالیزم له بنسټه راوپرځوي، د فیوډالي ځواک بشپړ راپرځول خو لا پرېږده. پدې ترتیب د چین ملي بورژوازي ځواکمنه نه ده، چې د چین د بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب له دوو بنسټیزو ستونزو څخه یوه هم حل کړي یا له دوو بنسټیزو دندو څخه یوه ترسره کړي. خو د چین ستره بورژوازي، چې ګومیندان یې استازی دی، د ۱۹۲۷م څخه تر ۱۹۳۷م په اوږده مهال کې ځان د امپریالیزم غېږ ته واچاوه او د انقلابي خلکو پر ضد له فیوډالي ځواکونو سره یو شوه. د چین ملي بورژوازي هم په ۱۹۲۷م او څه موده وروسته تر هغه د انقلاب ضد لوري په څنګ کې ودریده. د جاپان ضد مقاومت جګړې په مهال د سترې بورژوازۍ یوه برخه، چې وان جین وی یې استازی دی، یو ځل بیا د دښمن پر وړاندې د تسلیم سر ټیټ کړ او د سترې بورژوازۍ د خیانت یوه تازه بیلګه یې په لاس راکړه. دا دی د چین بورژوازۍ او د اروپایي هیوادونو او امریکا او په ځانګړې توګه د فرانسې بورژوازۍ ترمنځ توپیر. هغه مهال چې ددغه هیوادونو بورژوازي د انقلابونو په عصر کې اوسېدل، د هغه ځای بورژازي انقلابونه تر یوې کچې کلک دریزي وو؛ خو د چین بورژوازی ان دغه کلک دریز هم نلری.

په انقلاب کې احتمالي ګډون له یوې خوا او د انقلاب له دښمنانو سره د جوړجاړي ګروهنه (تمایل) له بلې خوا ــ دغه شان ده د چین د بورژوازۍ دوه خواوې ځانګړنه، چې د دوه لارۍ په سر ولاړه ده. ان د امریکا او اروپا بورژوازي هم په تیر وخت کې دغه ډول دوه خواوو ځانګړنو درلودونکې وې. دوی د خپل ځواکمن دښمن پر وړاندې له کارګرو او بزګرو سره یو ځای کېږي او د هغه پرضد مبارزې ته راولاړیږي، خو کوم مهال چې کارګران او بزګران راویښیږي، دوی مخ اړوي او د کارګرو او بزګرو پر ضد له دښمن سره یو کیږي. دا یوه عمومي قانونمندي ده، چې د نړۍ بیلابیلو هیوادونو د بورژوازۍ په اړوند صدق مومي، خو دغه صفت د چین په بورژوازۍ کې په لا زړه توګه تر سترګو کیږي.

په چین کې په بشپړ ډول روښانه ده، چې هر څوک چې وکولای شي د امپریالیزم او فیوډالي ځواکونو د راپرځولو په لار کې د خلکو لارښوونه وکړي، د خلکو باور به په ځان

راولي، ځکه چې امپریالیزم او فیوډالي ځواکونه، په ځانګړې توګه امپریالیزم د خلکو کسم خوړلي غلیمان دي. نن ورځ چې هر څوک وکولای شي د جاپان د امپریالیزم په شړلو کې د خلکو لارښوونه وکړي او ولسواکه رژیم رامنځته کړي، د خلکو ژغورونکې به وي. تاریخ دا ښودلې ده چې د چین بورژوازي ددې دندې تر سره کولو لپاره ځواکمنه نده، د دې دندې ترسره کول هرومرو د پرولتاریا تر غاړه کېږي.

په دې توګه پرولتاریا، بزګر، روڼآندي او د چین وړې بورژوازۍ ځینې نورې برخې هغه بنسټیزه ځواکونه جوړوي، چې د هیواد د برخلیک ټاکونکي دي. دغه طبقې چې ځینې یې ویښې شوي او ځینې نورې یې د ویښیدو په حال کې دي، د چین په دموکراسي جمهوریت کې د دولت او د سیاسي واک په جوړښت کې بنسټیز وګړي جوړوي او پرولتاریا به یې لارښود ځواک وي. د چین دموکراسي جمهوریت، چې مونږ یې نن جوړول غواړو، کېدایشي یواځې هغه دموکراسي جمهوریت واوسي، چې په هغه کې د ټولو امپریالیستي او فیوډالي ضد عناصرو ګډه دیکتاتوري، چې مشري به یې پرولتاریا کوي، پلې شي، یانې د نوې دموکراسۍ جمهوریت، د خلق درې نوی اصلو ریښتینی انقلابی جمهوریت، د خلکو د واقعاً انقلابی درې اصلونو جمهوریت، چې په درو بنسټیزو سیاسی اصلونو کې شامل دي.

دغه د نوې دموکراسۍ جمهوریت له یوه اړخه د اروپا او امریکا له زاړه ډول پانګوالو جمهوریتونو سره، چې په هغو کې د بورژوازۍ دیکتاتوري ټینګه ده، توپیر لري، او له بله پلوه د پرولتاریا تر دیکتاتورۍ لاندې شوروي ډوله سوسیالیستي جمهوریت سره هم توپیر لري، دغه ډول سوسیالیستي جمهوریت اوس مهال په شوروي اتحاد کې پلې کېږي او سربیره پر دې په ټولو پانګوالو هیوادونو کې به پایښت ومومې او پرته له ګمانه په ټولو پرمخ تللو صنعتي هیوادونو کې به د دولت او سیاسي ځواک د جوړښت مسلطه بڼه ولري؛ خو د تاریخ یوه ټاکلې پړاؤ په اوږدو کې، دغه ډول جمهوریت مستعمره او نیمه مستعمره هیوادونو د انقلابونو لپاره لا مناسب نه دی. له همدې کبله هغه دولتي بڼه چې د مستعمره او نیمه مستعمره هیوادونو انقلابونه یې په دغه ټاکلې تاریخي دور کې غوره کوي، کېدایشي یواځې دریمه بڼه واوسي، هغه بڼه چې مونږ یې د نوې دموکراسۍ جمهوریت بولو. دغه یوه ټاکلې تاریخي دور لپاره مناسبه بڼه ده او په دې توګه یوه انتقالي

بڼه ده، خو سره له دې یوه اړینه بڼه ده او نشو کولای له هغې څخه سترګې پټې کړو.

له دې کبله په نړۍ کې د طبقاتي سیاسي واک د ماهیت پر بنسټ بېلابېل دولتي سیستمونه په اساسي ډول درې ډوله دي: لومړی د بورژوازۍ دیکتاتورۍ جمهوریت، دویم د پرولتاریا دیکتاتوري جمهوریت او دریم د څو انقلابي طبقو ګډې دیکتاتورۍ لاندې جمهوریت.

لومړی ډول د زړې دموکراسۍ دولتونه دي. نن ورځ له دویمې نړیوالې امپریالیستي جګړې وروسته له ډېرو پانګه والو هېوادو څخه دموکراتیک چاپېریال تغر ټول کړي او دغه هیوادونه د یوې خونړۍ او پوځي دیکتاتورۍ په منګولو کې لوېدلي او یا د دارنګه بدلون په درشل کې دي. ځینو دولتونو ته، چې په هغو کې د مځکې خاوندانو او بورژوازۍ ګډه دیکتاتوري واکمنه ده، کولای شو په دغه ډول کې ځای ورکړو.

دویم ډول یې په شوروي اتحاد کې شتون لري، او د پیدایښت لپاره یې شرایط په بېلابېلو پانګه والو هیوادونو کې د رامنځته کېدو په حال کې دي. او په راتلونکې کې د دغسې سیستم دولت به د یوې ټاکلې دورې لپاره واکمن ډول وي.

دریم ډول د دولت انتقالي بڼه ده، چې د مستعمره او نیمه مستعمره هیوادونو انقلابونه یې باید د ځان لپاره وټاکي. له دغه انقلابو څخه هر یو به په ناچاره خپلې ځانګړتیاوې ولري، خو دغه د عمومي ورته والې په پرتله له واړو توپیرونو څخه زیات څه نه دي. هر کله چې د مستعمرو او نیمه مستعمرو له انقلابونو څخه خبرې کېږي، د هغوې د دولت او د سیاسي واک جوړښت به لازمن په خپل بنسټ کې سره یو شان وي، یانې د نوې دموکراسۍ دولت به وي، چې هغه کې به د څو امپریالیستي ضد طبقو دیکتاتوري پلې کېږي. په ننه‌ني چین کې د نوې دموکراسۍ د دولت دغه بڼه، د جاپان ضد متحدې جبهې بڼه ځان ته نیسي. د دولت دغه جاپاني ضد او امپریالیستي ضد بڼه په همدې توګه د څو انقلابي طبقو د یوالي او د متحدې جبهې استازې ده. سره له دې چې، د مقاومت جګړه، مودې کېږي، چې دوام لري، خو د دموکراتیزه کولو کار، د جاپاني ضد دموکراتیکو جبهو پرته، چې د کمونیست ګوند لخوا یې لارښوونه کېږي، په ټوله کې لا په ډېرو سیمو کې پیل شوی نه دی، او د جاپان امپریالیزم له دغه تر ټولو بنسټیز کمزور ټکي څخه ګټه پورته کوي او پرته له کوم خنډه خپل یرغل مخ پر وړاندې

وړي. که چېرې په سياست کې بدلون را منځ ته نشي، د ولس راتلونکی به له لوی ګواښ سره مخ شي.

پدې ځاې کې د بحث اړينه موضوع «د دولت د سيستم» مسئله ده. ددې مسئلې په اړوند د تسين سلسلې له وروستيو څو لسيزې کېږي، چې دغه شخړه روانه ده او تر اوسه روښانه شوې نده. په واقعيت کې دغه موضوع په دولت کې د بېلابيلو ټولنيزو طبقو د موقعيت له مسئلې سره تړاو لري. بورژوازي په طبقاتي موقعيت کې دغه توپير پرله پسې پټ ساتلی او په اصطلاح «ولس» تر پوښښ لاندې د يوې طبقې ديکتاتوري پلې کوي. دغه پرده اچونه په هيڅ ډول د انقلابي خلکو په ګټه نده او بايد په پوره څرګنده توګه بربنډه شي. د «ولس» اصطلاح کولای شو وکارو، خو انقلاب ضد او ولس ته خاينان پکې ګډون نه مومي. د انقلاب ضدو او ولس ته خاينانو پر ضد د ټولو انقلابی طبقو ديکتاتوري، دا هغه دولت دی چې نن ورځ مونږ ورته اړتيا لرو.

زمونږ دوران کې په بېلابيلو هيوادونو کې په اصطلاح دموکراتيک سيستم د بورژوازۍ په انحصار کې دی، او يوازې پر عامو خلکو د ناتار په يو اوزار بدل شوی دی. خو د ګوميندان د دموکراسۍ اصل يو دموکراتيک سيستم دی، چې ټول عام خلک بايد له هغه څخه برخه‌من شي، نه دا چې د لږو شميرو برخه واوسي.

دا د ګوميندان د ملي کنګرې لومړني مانفيست کره وينا ده، چې په ۱۹۲۴م کال کې د کمونيست ګوند او د ګوميندان تر منځ د همکارۍ په دوران کې منعقد شوې وه. خو له شپاړلس کلونو را پديخوا، خپله ګوميندان دغه بيانيه تر پښو لاندې کړې او کار يې خطرناک ګړکېچ ته کاږلی، چې نن ورځ يې زموږ هېواد تر ګرېوان نيولی. دا يو څرګنده خطا ده، چې ګوميندان تر سره کړې؛ هيله لرو چې هغه دغه خطا د جاپان ضد جګړه کې له ځانه وتوږي.

خو «د ځواک سيستم» داسې مسئله ده چې د سياسي ځواک د جوړښت له بڼې سره تړاو لری، پداسې بڼه هسې يوه بڼه، چې ټاکلي ټولنيزې طبقې يې د سياسي ځواک د ارګانونو د ټينګښت په موکه ټاکي، تر څو له دښمنانو سره لاس په جګړه پورې او له خپله ځانه دفاع وکړي. کله چې د سياسي ځواک ارګانونه مناسبه بڼه ونلري، د دولت په هکله خبرې هم رامنځته کېدلای نشي. نن ورځ چين کولای شي په ټول هيواد، په

ولايتونو، ښارونو، ولسواليو او کليو کې د خلکو د استازو د کنفرانس سيستم ومني؛ دغه کنفرانسونه به په ټولو پوړونو کې د دولتي ځواک ټول ارګانونه ټاکي. خو د ټاکنو داسې يو واقعاً عمومي سيستم، چې د ټولو لپاره مساوي، د جنسي ، عقايدو، شتمنۍ، زده کړو او داسې نورو توپيرونو څخه پرته ټينګ شي. يوائې داسې يو سيستم کولای شي چې په دولت کې د هرې انقلابي طبقې له موقعيت سره سمون وخوري، د خلکو د ارادې د بيان او د انقلابي مبارزاتو د مشرۍ په ګټه وي، او د نوې دموکراسۍ روح انځور کړي. دغه سيستم هماغه دموکراتيک سنتراليزم دی. يوائې هغه دولت، چې د دموکراتيک سنترياليزم په بنسټ جوړ شوې وي، کولای شي د ټولو انقلابي خلکو اراده په ښه توګه بيان کړي او د انقلاب له دښمنانو سره تر ډېر بريده انرژۍ سره په جګړه بوخت شي. د «نه دا، چې د لږ شمېر په برخه واوسي» اصل بايد د حکومت او پوځ په جوړښت کې پلی شي؛ پرته له ريښتيني دموکراتيک سيستم څخه دغه موخه نشي تر لاسه کېدلای او دا پدې مانا ده، چې د ځواک سيستم به د دولت له سيستم سره انډول نه وي.

د دولت سيستم - د ټولو انقلابي طبقاتو ګډه ديکتاتوري، د ځواک سيستم - دموکراتيک سينتراليزم. دا دی د نوې دموکراسۍ سياست، دا دی د نوې دموکراسۍ جمهوريت، د جاپان ضد متحدې جبهې جمهوريت، د خلکو د نويو درې اصلونو جمهوريت، چې په درو اساسی سياسی اصلونو کې شامل دی، د چين جمهوري چې نوم يې د هغه له واقعيت سره سمون لري. هغه څه چې نن يې مونږ لرو، د چين د جمهوريت نوم دی نه د هغه واقعيت. بايد داسې کار وشې چې نوم د واقعيت سره سمون پيدا کړي ــ دا زمونږ اوسنۍ دنده ده.

دغه دي هغه داخلي سياسي اړيکې، چې انقلابي او جاپان سره په جګړه بوخت چين يې بايد رامنځ ته کړي او په هيڅ ډول نشې کولای، چې رامنځ ته يې نکړي؛ اوس مهال د «هيواد د جوړولو» په برخه کې همدا يوائنی صحيح لوری دی.

## ۶ – د نوې دموکراسۍ اقتصاد

په چين کې بايد داسی يو جمهوريت رامنځته شي چې هم د سياست په برخه کې او

هم د اقتصاد په برخه کې د یوې نوې دموکراسۍ جمهوریت وي.

ستر بانکونه او لویې صنعتي او سوداګري موسسې باید د دغه جمهوري دولت تر ولکې لاندی راشي.

له ټولو هغو چیني او بهرنیو موسسو څخه، چې یا انحصاري بڼه لري او یا د هغو لمن د خصوصي ادارې  د ظرفیت له بریده وتلې ده، لکه بانکونه، د ریل‌پټلۍ، د الوتکو چارې، به د دولت له خوا اداره او ګټه به ترې واخیستل شي، تر څو خصوصي پانګه و نشي کولای د خلکو د ژوندانه وزلې (وسایل) تر خپل نظارت لاندې ونیسي. دا دی د پانګې د محدودولو اساسی اصل.

دا هم د ګومیندان او کمونیست ګوند د همکارۍ په مهال د ګومیندان د لومړنۍ کنګرې د مانفیست کره بیان دی. دا د نوې دموکراسۍ د جمهوریت د اقتصادي جوړښت سمه تګلار ده. د نوې دموکراسۍ په جمهوریت کې دولتي اقتصاد د پرولتاریا تر مشرۍ لاندې سوسیالیستي ځانګړتیا لري او په ټوله کې ملي اقتصاد لارښود ځواک جوړوي، خو دغه جمهوریت د خصوصي مالکیت او پانګوالۍ نور ډولونه له منځه نه وړي او د پانګوالۍ تولید د ودې مخه، چې «ونشي کولای د خلکو د ژوندانه وزلې (وسایل) تر نظارت لاندی ونیسی»، نه نیسي، ځکه چې د چین اقتصاد لا هم خورا ډېر وروسته پاتې دی.

دا جمهوریت به ټاکلي اړین ګامونه اوچت کړي، چې د فیوډالانو ځمکې مصادره او د بې ځمکو او لږ ځمکو لرونکو بزګرانو ترمنځ یې وویشي، د ډاکټر سون یات سن شعار، «ځکمه د کروندګر» باید پلی شي، فیوډالي اړیکې په کلیو کې له منځه یوسي او ځمکه باید د بزګر په خصوصی ملکیت بدله کړي. په کلیو کې د مرفه بزګرانو  د اقتصاد شتون مجاز دی. دا دی «د ځمکې مالکیت په اړه د حقوقو د برابرۍ» اصل. او «ځمکه د کروندګر» دغه اصل لپاره سم شعار دی. په کلي توګه په دغه پړاؤ کې خبره د سوسیالیستي کروندګرۍ د ټینګښت په اړه نده، خو د کوپراتیفي اقتصاد مختلفې بڼې، چې د «ځمکه د کروندګر» پر بنسټ وده کوي، سوسیالیستي عناصر له ځانه سره لري.

د چین اقتصاد باید د «پانګې محدودولو» او «د ځمکې مالکیت په اړه د حقوقو برابرۍ» لاره پر مخ یوسي، د چین اقتصاد باید هیڅکله هم «د لږه‌کیو برخه ونه اوسي»، هیڅکله نباید څو تنه شتمنو او فیوډالانو ته اجازه ورکړل شي، چې د «خلکو د ژوندانه

وزلې تر نظارت لاندې ونيسي» او هيڅکله نبايد اجازه ورکړل شي، چې د اروپا او امريکا په خير پانګواله ټولنه رامنځ ته شي او په همدې ډول بايد هيڅکله اجازه ورنکړل شي چې زړه او نيمه فيوډالي ټولنه دوام ومومي. که هر څوک جسارت وکړي او ددې لوري خلاف ګام پورته کړي، په يقين سره به خپلې موخې ته ونه‌رسيږي او له ککرۍ سره به په ځمکه ولړيږي.

دا دي هغه داخلي اقتصادي اړيکې، چې انقلابي او د جاپان پر ضد د مقاومت په حال کې چين يې بايد ټينګې کړي او ناچاره ټينګې به يې هم کړي.

دا اقتصاد، د نوې دموکراسۍ اقتصاد دی.

او د نوې دموکراسۍ سياست د نوې دموکراسۍ د دې اقتصاد نچوړ بيان دی.

## ۷- د بورژوازي ديکتاتورۍ رد

يو داسې جمهوريت چې د نوې دموکراسۍ سياست او اقتصاد لري، د هيواد له ۹۰ سلنې څخه زياتو خلکو لپاره د منلو وړ ده. او بله لاره نشته.

د بورژوازي تر ديکتاتورۍ لاندې د پانګوالۍ ټولنې رامنځته کول څنګه؟ البته دغه پخوانۍ لار د اروپا او امريکا بورژوازۍ وهلې ده، خو سربېره پر دې که خوښ ياست او که نه، نه نړيواله وضعه او په همدې توګه داخلي وضعه هم چين ته پر دغې لارې د تګ امکان نه ورکوي.

د نړيوالې وضعې له ليده، دغه لار له خنډ سره مخ کيږي. د اوسنۍ نړيوالې وضعې ځانګړتيا په اساسي توګه د پانګوالۍ او سوسياليزم ترمنځ مبارزې څخه عبارت ده ، د پانګوالۍ راپرځيدل او د سوسياليزم بريا. په لومړي ګام کې نړيواله پانګوالي، يعنې امپرياليزم ته دا اجازه نه ورکوي، چې په چين کې د بورژواژۍ تر ديکتاتورۍ لاندې پانګواله ټولنه رامنځ ته شي. د چين د وروستيو سل کالو تاريخ، پر چين د امپرياليزم د تيري تاريخ دی، د چين له خپلواکۍ او پانګوالۍ له ودې سره د امپرياليزم د مقابلې تاريخ دی. د چين تير انقلابونه د امپرياليزم له لورې د ځپلو په پايله کې له ماتې سره مخ شول، له همدې کبله ډيرو انقلابي شهيدانو ټول ژوند له امپرياليزم څخه کرکه او دښمني يې

ورسره کوله. نن د جاپان ځواکمن امپریالیزم په چین کې ژورې ریښې ځغلولی او هوډ لری چې هغه پر خپله مستعمره بدل کړي؛ نن دا چین ندی چې خپلې پانګوالۍ ته وده او تکامل ورکوی، بلکه د جاپان بورژوازي ده چې په چین کې خپله دیکتاتوري چلوی. سمه ده، چې نن مونږ په داسې یو دوران کې یو، چې امپریالیزم خپلې وروستۍ لاس او پښې خوځوي ، هغه د مرګ په حال کې ده ـ امپریالیزم «د ځنکدن په حال کې پانګوالي »[۵]ده. خو دقیقا د همدې لپاره چې امپریالیزم د ځنکدن په حال کې ده، د ځان ساتنې لپاره له هر وخت څخه زیات په مستعمراتو او نیمه مستعمراتو پورې تړلی ده او هیڅکله به دغو مستعمراتو او نیمه مستعمراتو ته اجازه ورنکړي، چې د بورژوازۍ تر دیکتاتورۍ لاندې د پانګوالۍ ټولنې په خیر یو شی رامنځ ته کړي. په همدې دلیل چې د جاپان امپریالیزم د سیاسي او اقتصادي بحران ژورې کندی ته لویدلی دی، په بله وینا د مرګ په حال کې ده، مطلقن دا اړینه وینی چې پر چین یرغل وکړي او هغه په خپله مستعمره بدل کړي او د بورژوازي دیکتاتورۍ د ټینګښت او ملي پانګوالۍ د ودې لار پرې وتړي.

په دویم ګام کې، سوسیالیزم دی، چې د بورژوازۍ تر دیکتاتورۍ لاندې د پانګوالې ټولنی د رامنځته کېدو اجازه نه ورکوي. د نړۍ ټول امپریالیستي هیوادونه زمونږ دښمنان دي، او که چین د خپلواکۍ غوښتونکې وی، په هیڅ صورت نشي کولای د سوسیالیستي دولت او نړیوالې پرولتاریا له مرستې سترګې پټې کړي. په بله وینا چین نشي کولای د شوروي اتحاد له مرستو سترګې پټې کړي، نشي کولای د جاپان او همدارنګه د انګلستان، امریکا، فرانسې، آلمان او ایټالیا د پرولتاریا له هغو مرستو څخه چې په خپل هیواد کې د پانګوالۍ پر ضد د مبارزې له لارې یې دوی سره کوي، سترګې پټې کړي. که څه هم نشو ویلی چې د چین د انقلاب بریا به د جاپان او همدارنګه د انګلستان، امریکا، فرانسې، آلمان، ایټالیا د انقلاب او یا ددغو هیوادونو له ډلی د یوه یا دوو هیوادونو له بریا وروسته لاس ته راشي، خو په دې کې هیڅ شک نشته چې د چین انقلاب به بریا ته ونه رسیږی، که چیرې ددغو هیوادونو پرولتاریا لاس په کار نشي. د مقاومت په جګړه کې د چین وروستۍ بریا لپاره په ځانګړی توګه د شوري اتحاد مرستې مطلقن اړین شرط دی. که د شوروي مرستې رد شي، انقلاب به له ماتې سره مخ شي. آیا له ۱۹۲۷م[۶] څخه وروسته د شوروي پر ضد د جګړو درسونه خورا څرګند نه دي؟ نن

نړۍ د انقلابونو او جګړو نوی پړاو تیروي، د پانګوالۍ له نه دړه کېدونکی له منځه تګ او د سوسیالیزم پر ودې نه غالبېدونکی پړاو. په داسې شرایطو کې آیا دا یو پوچ خیال ندی، چې که څوک وغواړي په چین کې پر امپریالیزم او فیوډالیزم له بریا وروسته د بورژوازۍ تر دیکتاتورۍ لاندې د پانګوالۍ ټولنه رامنځته کړي؟

له لومړۍ نړیوالې امپریالیستي جګړې او د اکتبر له انقلاب وروسته که د ځانګړو شرایطو په پایله کې (د یونان د تېري پر ضد د بورژوازي بریا، د پرولتاریا خورا کمزورتیا)، مونږ د کمالي ترکې د رامنځته کېدو شاهد وو، چې په هغې کې د یوې وړوکې بورژوازي کمالیستي[۷] دیکتاتوري ټینګه شوه، له دویمې نړیوالې جګړې او په شوروي اتحاد کې د سوسیالیزم د جوړښت له پای ته رسېدو وروسته به هیڅکله بله ترکیه رامنځته نشي، او په کمزوري اټکل سره، هسی ترکیه، چې د ۴۵۰ میلیونو وګړو جمعیت ولري. د چین د ځانګړو شرایطو له کبله (د بورژوازۍ کمزورتیا او د جوړجاړۍ خاصیت، د پرولتاریا ځواکمني او په انقلاب کې د هغې پیاوړتیا) به هیڅکله د ترکیې په څیر کار په آسانۍ سره پای و نه مومي. آیا د چین د بورژوازۍ عناصرو، د ۱۹۲۷م کال د لومړي انقلاب له ماتې وروسته د کمالیزم په اړه خبرې پورته نکړې؟ خو د چین کمال چېرې دی؟ د چین د بورژوازي دیکتاتوري او پانګوالۍ ټولنه چېرته ده؟ سربېره پردې په اصطلاح کمالي ترکیه په پای کې دې ته اړه شوه چې ځان د انګلستان او فرانسې امپریالیزم لمنې ته وغورځوی او په تدریج سره په یوه نیمه مستعمره، او د امپریالیستي ارتجاعي نړۍ په یوه برخه بدله شوه. په نه‌ننۍ نړیوالې وضعې کې، په مستعمراتو او نیمه مستعمراتو کې هر «اتل» یا په امپریالیستي جبهې کې دریږي او د نړیوال انقلاب ضد ځواکونو یوه برخه ګرځي؛ او یا د امپریالیستي ضد جبهې کې ځای نیسي او د نړیوال انقلاب د ځواکونو یوه برخه ګرځي. هغه باید له دغو دوه لارو یوه وټاکي، بله لاره نشته.

د کورنۍ وضعې له نظره، د چین بورژوازي باید اړین درسونه اخیستي وای. په ۱۹۲۷م کې، په هغه موکه کې، چې انقلاب تازه د پرولتاریا، بزګرانو او د وړوکې‌بورژوازۍ ځینو برخو د هڅو تر سیوري لاندې د بریا په لور روان وۀ، د چین بورژوازي چې ستره بورژوازي د هغې په سر کې وه، دغه ولسي پرګنې یې په یوه لغته ځنګ ته کړې، د انقلاب لاسته راوړنې یې خپل انحصار ته راوستلې او له امپریالیزم او فیوډالي ځواکونو سره یې

انقلابي ضد یووالی جوړ کړ او د لسو کلونو په موده یې خپل ټول ځواک د «کمونیستانو په ځپلو» کې وکاراوه. خو له دې کاره څه ګټه ترلاسه شوه؟ نن ورځ چې قوی دښمن زمونږ په خاوره کې ژور وت(درز رخنه) جوړ کړي او د چاپان ضد مقاومت جګړه، دوه کاله کیږي، چې دوام لري، آیا تاسو بیا هم غواړی چې د اروپا او امریکا د بورژوازۍ زړه او منسوخه نسخه کاپي کړی؟ د «کمونیستانو ځپل» لس کاله وغزېدل، خو د دې «ځپلو» پایله د بورژوازي تر دیکتاتورۍ لاندی د پانګوالۍ ټولنې ته ونرسېده، آیا تاسو فکر کوی چې بیا یې وآزمایاست؟ سمه ده، چې د «کمونستانو د ځپلو» له لس کلنې لاری د «یوه ګوند دیکتاتوري» رامنځته شوه، خو په واقعیت کې دا نیمه مستعمره – نیمه فیوډالي دیکتاتوری ده. او د «کمونیستانو له ځپلو» څلور کاله وروسته (له ۱۹۲۷م څخه د ۱۹۳۱م د سپتامبر د ۱۸مې تر پیښې پوری) کار «منچورګوه» ته ورسیده؛ له هغې څخه شپږ کاله وروسته په ۱۹۳۷م کال کې د جاپان امپریالیزم یرغل د چین ستر دیوال سویل ته راورسیده. که نن بیا ځیني کسان وغواړي چې نور لس کاله د «کمونیستانو په ځپلو» لاس پوری کړي، نو دا به د له نوي ډوله څخه «کمونیستانو ځپل وي»، چې له پخواني ډول سره لږ توپیر لري. آیا همدا اوس دا ځغلنده چټکتیا نده، چې په تهور سره د «کمونیستانو د ځپلو» د بار پر غاړه اخیستلو کې له نورو مخکې کیږي؟ دا کس وان جین وی دی، چې د نوي ډول نامتو کمونیست ضد شوی دی. هر څوک، چې غواړي د هغه له ډلې ټپلې سره یوځای شي، آزاد دی، خو په دغه حال کې د بورژوازي د دیکتاتورۍ، د پانګوالۍ د ټولنې، د کمالیسم، د مدرن دولت، د یوه ګوند د دیکتاتورۍ د نغمو غږول به لا شرمناکه نه وي؟ که نه غواړي چې د وان جین وی له ډلې سره یو ځای شي او غواړي چې د جاپان پر ضد مقاومت کې ګډون وکړي، په دې موخه، چې پر جاپان له بري څخه وروسته به خلک، چې د جاپان پر ضد یې جګړه کړې، په یو لغته وشړي، د جاپان ضد مقاومت ثمرې په خپل انحصار کې ونیسي، او «د واحد ګوند ابدي دیکتاتوري» ټینګه کړي، آیا دا له یوه خوب او خیال څخه ډېر څه دي؟ «د جاپان پر وړاندې مقاومت وکړئ!»، «د جاپان پر وړاندې مقاومت وکړئ!» خو څوک په دې مقاومت لاس پورې کوي؟ خو له کارګرانو، بزګرانو او د وړوکې بورژوازۍ له نورو برخو پرته تاسو یو ګام هم نشی پورته کولی. او هغه مهال، که هر چا جرئت وکړ چې دوی په

لغته ووهي، خپله به ټوټې ټوټې شي. آیا دا د لومړنیو مالوماتو برخه نده؟ خو د چین د بورژوازۍ سختدریزو (زه یوازې سختدریز په پام کې لرم) ګواکې د شلو کلونو له تیرو څخه هیڅ زده کړه کړې نه ده. آیا دوی ته مو غوږ نه دی، چې بیا هم د «کمونیست ګوند د محدودولو»، «د کمونیست ګوند د منحلولو» او د «کمونیست ګوند پر ضد د مبارزې» د خبرو داوې (دعوا) کوي؟ مګر تاسو ونه لیدل چې د «پردیو ګوندونو د فعالیت د محدودولو په موخه له تدابیرو» وروسته د «پردیو ګوندونو د مسئلې د حل تدابیر» راغلل او وروسته هم «د پردیو ګوندونو د مسئلې حل لپاره لارښوونې»؟ خو په پای کې، که دوی د «تحدیدولو» او «تحلیلولو(منحلولو)» ته په همدې توګه دوام ورکړي، دا پوښتنه رامنځ ته کیږي، چې د ولس لپاره به کوم برخلیک او د ځان لپاره به کوم برخهلیک وسپموي؟ مونږ دغو ښاغلو ته د زړه له کومې وړاندیز کو چې تاسو خپلې سترګې د چین او نړۍ پر مخ، د هغه څه پر مخ، چې په چین کې دننه او بهر کې تیریږي، او د اوسنیو حالاتو پر مخ وغړوۍ او خپلې هغه تیروتنې بیا له سره مه نیسئ. که تاسو په خپلو تیروتنو ټینګار کوی، په یقین سره د ولس راتلونکې به له اسکېرنې(فلاکت) سره مخ وي، خو زه ګومان کوم چې ستاسو خپل حالت به هم هومره ښه نشي. دا مطلقاً سمه او کره ده، که د چین د بورژوازۍ سخت دریزو عقل سر ته رانشي، یو تیاره راتلونکې به د هغوی په تمه وي او ځان به د مرګ او له منځه وړلو خواته یوسي. له همدې کبله مونږ هیله من یو چې په چین کې د جاپان ضد متحده جبهه وساتل شي، د ټولو همکاري د هغې پر ځای، چې د یوې ډلې ټپلې انحصار خبره مطرح وي، د جاپان ضد مبارزې بریا ترسره شي؛ دا یواځنۍ سمه لار ده او نورې ټولې لارې نامعقولې دي. دا هغه څه دي چې مونږ کمونیستان یې د زړه له کومې هغو ته توصیه کوو او نور مونږ مه ملامتوۍ چې تاسو ته مو د مخه ګوابښ کړی نه وۀ.

د چین دا پخوانی متل، «که خواړه شته، پریږدی، چې ټول یې وخوري»، له حقیقته ډک دی. له هغه ځایه چې ټول د دښمن پر ضد جګړه کوي، باید ټول د خوړو امکان ولري، باید ټول د کار حق او زده کړو حق ولري. د «میم زر ما ټوله زما» او «هیڅوک جرئت نکوي، چې ما ته زیان ورسوي» هغه د فیوډال څښتن د زاړه نیرنګ څخه پرته نور څه نه دي. د شلمې پیړۍ په څلویښتمو کلونو کې، نور دا زړې تګلارې کوم ارزښت

نلری.

مونږ کمونیستان هیڅکله انقلابی وګړي نه شړو، مونږ له ټولو هغو طبقو او قشرونو او سیاسی ګوندونو او سازمانونو او شخصیتونو سره، چې وغواړي تر پایه پورې د جاپان پر ضد مبارزه وکړي، متحده جبهه ساتو او اوږدمهاله همکاري ورسره کوو. خو که چا وغوښتل چې کمونیست ګوند څنګ ته کړي، دا کار هم ناشونی دی؛ که څوک وغواړي چې متحده جبهه له منځه یوسي، دا کار هم ناشونی دی. چین باید د مقاومت جګړې ته ادامه ورکړي، خپل یووالي او پرمختګ ته ادامه ورکړي؛ که څیني کسان وغواړي تسلیم شي، نفاق رامنځته کړي او شاته لاړ شي، مونږ هغوی نشو زغملی.

## ۸ ــ د کېڼې قافیه اوبدلو ردول[۱]

که د بورژوازۍ تر دیکتاتوري لاندې د پانګوالۍ لارې ته ځای نشته، آیا دا شونې ده، چې د پرولتاریا تر دیکتاتوري لاندې د سوسیالیزم لار پر مخ بوځو؟

نه، دا هم ناشونې ده.

پدې کې شک نشته چې انقلاب لا په خپل لومړني پړاو کې دی، او په راتلونکي کې به خپل دویم پړاو، سوسیالیزم ته تکامل وکړي. چین به یوازې هغه وخت واقعاً نیکمرغه شي، چې د سوسیالیزم پړاو ته ننوځي. خو نن ورځ د سوسیالیزم د رامنځته کولو وخت ندی. د چین د انقلاب د نن ورځې دنده د امپریالیزم او فیوډالیزم پر ضد جګړه ده، او تر هغه وخته چې دا دنده پای ته ونرسېږي، د سوسیالیزم په هکله خبرې هم نشي رامنځ ته کېدای. د چین انقلاب ناچاره باید دوه پړاونه ووهي: لومړی د نوې دموکراسۍ پړاو یوازې وروسته له هغې د سوسیالیزم پړاؤ. له دې برسیره لومړنی پړاؤ به ډیر اوږد وي او نشو کولای له یوه سهاره تر ماښامه پورې یې سر ته ورسوو. مونږ تخیلي خلک نه یو، او نشو کولای له اوسنیو واقعې شرایطو څخه لیرې شو.

---

۱- قافیه اوبدل په انګلیسی کې phrasemongering راغلی او موخه یې هغه خلک دي چې خو ټکې یې له کتاب څخه یاد کړي او د هغې په واسطه غواړي خپله خبره سمه وښآیې. دلته موخه هغه کېڼ‌اړخی دي چې پخوانۍ یوه سمه تئوری یې کلکه نیولی او د هیواد ځانګړي شرایطو په پام کې نه نیولو سره غلطې پایلې ته رسیږي. (ژباړونکی)

یو ډله بدغوښتونکې مبلغان له کسته د انقلاب دغه دوه جلا پړاونه له یو بل سره ګډوي او د «واحد انقلاب تیوري» توصیه کوي تر څو وښایې، چې د خلکو درې اصله د انقلاب ټول پړاونو ته غزېږي او کمونیزم د خپل د شتون علت له لاسه ورکړی؛ دوی له دې تیوري څخه ګټه پورته کوي، تر څو د کمونیزم او کمونیست ګوند، له اتم لښکر، د نوې څلورم لښکر او د شنسي ـ ګان سو ـ نین سیا سرحدي سیمې سره کلک مخالفت وکړي. د دوې موخه دا ده چې هر ډول انقلاب له بنسټه رانسکور کړي، د کره بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب او د جاپان ضد کره جګړې پر ضد مبارزه وکړي او په پای کې عمومي افکار د جاپاني یرغلګرو په وړاندې تسلیمدو ته چمتو کړي. دغه حالت د جاپان امپریالیستانو د نقشې له مخې رامنځته کړی. ولې چې د جاپان امپریالیستان د اوهان له نیولو وروسته پدې پوه شول، چې یواځې په پوځي ځواک نشي کولای چین بندیوان کړي، او هغه وخت دوی په سیاسي یرغل او اقتصادي تطمیع لاس پورې کړ. سیاسي یرغل ددې لپاره ده چې د جاپان ضد جبهې متزلزل عناصر وغولوي، متحده جبهه تفرقې سره مخ کړي او د ګومیندان او کمونیست ګوند تر منځ همکاري له منځه یوسي. اقتصادي تطمیع د «صنعتي موسساتو په اداره کې له همکارۍ» څخه عبارت ده. جاپاني یرغلګرو په مرکزي او جنوبي چین کې یې چینی پانګه والو ته اجازه ورکړه، تر څو ۵۱ سلنه په پانګوالۍ کې ګډون وکړي او ۴۹ سلنه نور به د جاپاني پانګې برخه وي؛ او په شمالي چین کې یې چینی پانګوالو ته اجازه ورکړه چې تر ۴۹ سلنې پانګې اچونو کې ګډون وکړي او پاتې ۵۱ سلنه یې جاپاني پانګې برخه واوسي. همدارنګه جاپاني یرغلګرو د چین پانګوالو سره ژمنه وکړه چې د هغو پخوانۍ موسسې به دوی ته وروګرځوي او ددې موسساتو ارزښت به د هغو د پانګې د سهم په حساب کې واچوي. ځیني بې وجدانه پانګوال ټول اخلاقي اصول له یاده باسې او یواځې ګټه ګوري او دې کارته خپله خورا پرېمانه لېوالتیا څرګندوي. د دوی یوه برخه د وان جین وی په مشرۍ تسلیم شوي دي. بله برخه یې هم، چې د جاپان ضد جبهه کې یې ځانونه پټ کړي وو، پدې فکر دي، چې له غلیم سره یو ځای شي. خو هغوې د ډارنو غلو په څیر ویریږي، چې کمونیست ګوند به یې لاره وتړي؛ دوې لا زیات ددې څخه ویره لري، چې خلک به ولس ته خاینانو داغ د دوی په تندي ولګوي. له دې امله دوی سره راټول شول، یوه غونډه یې راوبلله

او د هغې په ترځ کې يې پريکړه وکړه، چې لومړی به په فرهنګي او رسنيزو محفلونو کې عمومي افکار چمتو کړي. نقشه چې جوړه شوه نور بايد کار ونه ځنډوو؛ هغو ځو متافزيک پلورونکي[۸] او پرې د پاسه ځو کسه تروتسکېستان اجير کړل، تر څو قلم د تورې په شان پورته کړي، شور ماشور جوړ کړي او پرته له پامه ګوزارونه وکړي. پدې توګه يې چټيات له خپلې ډېرې راويستلې، لکه: «د واحد انقلاب تيوري» او هغه افسانې، چې ګواکې کمونيزم د چين له ملي شرايطو سره تناسب نلری، په چين کې کمونيست ګوند لپاره د شتون کوم دليل نشته، اتم لښکر او نوی څلورم لښکر د جاپان ضد مقاومت په جګړه کې ورانکاري کوي او پرته له دې چې وجنګيږي بې موخې حرکت کوي، د شنسي ـ ګان سو ـ نين سيا سرحدي سيمې فيوډالي جاګير دی، کمونيست ګوند سرغړاندی دی، د يووالي غوښتونکی ندی او يواځې په دې لټه کې دی، چې توطئه او بلوا رامنځ ته کړي. د دوي موخه دا ده، هغه ځوک چې له دنيا نه بې خبره دي، وه غولوی او پانګوال وکولای شي په وړه موکه کې د کره دلايلو په وړاندې کولو سره ۴۹ يا ۵۱ سلنه پانګه په خپلو جيبو ته ووهي او د ولس ګټې په دښمن وپلوري. دا خو هماغه خبره شوه چې وايي: «تير او ستن غلا کړه او په خوسا لرګيو يې بدل کړه» ــ ايدیالوژيکه چمتو کول او عمومي افکارو ته زمينه جوړول له تسليم نه مخکې دي. دغه ښاغلي په جدی توګه «د واحد انقلاب تيوري» وړاندې کوي او د کمونيزم او کمونيست ګوند سره مبارزه کوي، په واقعيت کې له ۴۹ يا ۵۱ سلنې څخه پرته بل څه لپاره کار نکوي او په دې لار کې يې څه زيار ايستلی!

«د واحد انقلاب تيوري» له انقلابه څخه د ډېې تيوري ده ، دا دی د مطلب زړی.

خو د خلکو يوه بله ډله هم شته، چې ښايې بدې موخې ونلري او يواځې «د واحد انقلاب تيوری» او «په يو ځل د سياسي او ټولنيز انقلاب سرته رسولو» بشپړ ذهني تصور دوی بې لارې کړي وي؛ هغوی پام نه کوي، چې انقلاب په پړاوونو ويشل کيږي او په جبري توګه بايد له يوه انقلاب څخه بل ته ولاړ شو او «په يو وخت د دوو انقلابونو ترسره کول» شوني ندي. دا ډول نظريات، چې د انقلاب پړاونه سره ګډوي او له هغه هڅې، چې د اوسنی لپاره اړينې دي، کمزورې کوي، په خپل وار ډېرې زيانمنې دي. دا سمه ده که وويل شي، چې د انقلاب له دوه پړاوونو، لومړنی پړاو د دويم پړاو شرايط برابروي او دواړه پړاونه بايد له يوه بله سره تړلی وي، پرته له دې چې د بورژوازی ديکتاتوری ته

د دوی تر منځ د واټن کېدو موکه ورکړل شي. دا د انقلاب د تکامل مارکسیستي تیوري ده. دغه ادعا، چې دموکراتیک انقلاب یوه ټاکلې دنده نلري او یو ټاکلې وخت ورله ندی ځانګړی شوی او بله دنده دبېلګې په توګه د سوسیالیستي انقلاب دنده ــ چې یواځې کېدایشي په وخت کې تر سره شي ــ کېدایشي د دموکراتیک انقلاب له دندې سره یو ځای تر سره شي او دا په «یو ځل د دوو انقلابونو په ترسره کولو» نومول، یوه خوشې انګېرنه ده، چې واقعي انقلابیان یې نه مني.

## ۹- د سرسختانو ردول

اوس د بورژوازۍ سرسختانو په خپل وارسره پېښه په ډګر کې ایښې او وایي: ښه! تاسو کمونیستانو سوسیالیستي ټولنیز سیستم راتلونکي پړاؤ ته ځنډولی او اعلان مو کړی، چې «د خلکو درې اصله نن د چین لپاره اړین دي او زمونږ ګوند چمتو دی، چې د هغې بشپړه پلی کولو لپاره مبارزه وکړي»[۹]، د لنډ مهال لپاره خپل کمونیزم درټول کړئ. دا ډول خبرې د «واحد دکترین» تر سرلیک لاندې په دې ورستیو کې د لیونتوب په کریغو بدلې شوې دي. دا چېغې د بورژوازۍ استبداد له د سرسختانو ریوندتوب (تمایل) څرګندوي. خو په مؤدبانه لحن سره دغه چېغې د سیلم عقل مطلق نشتوالی نومولی شو.

کمونیزم د پرولتاریایې ایډیالوژۍ بشپړ او یواځنی سیستم او په همدغه حال نوی ټولنیز نظام دی، چې له بل هر یو آیډیالوژیک سیستم او ټولنیز نظام سره توپیر لري او د بشریت ګرد تاریخ کې تر ټولو بشپړ، تر ټولو پرمختللی، تر ټولو انقلابي او تر ټولو منطقي نظام دی. د فیوډالیزم ټولنیز نظام او آیډیالوژیک سیستم نور د تاریخ موزیم ته سپارل شوی دی. د پانګوالۍ ټولنیز نظام او آیډیالوژیک سیستم د نړۍ په یوه برخه کې (شوروي اتحاد کې) موزیم کې ایښودل شوی او په نورو هیوادونو کې هم لکه «لمر چې د لویدیځ غرونو شا ته ښکته کېږي او ځنکدني ته، (څوک چې د ځنکدن په حالت کې وي) چې په بېړه مري» پاتی کېږي، چې ډېر ژر به د تاریخ موزیم ته وسپارل شي. یواځې د کمونیزم آیډیالوژیکي سیستم او ټولنیز نظام لکه یمال (برفکوچ) چې له غره رالویږي او لکه بریښنا چې آسمان روښانه کوي، په شور او ولولو سره په ټوله نړۍ لمن خپروي او

خپل زړه وړونکی پسرلی روزي. له هغه راهیسی چې علمي کمونیزم چین ته لاره ومونده، د خلکو لید پراخ شوی او د چین انقلاب هم خپلې بڼې ته بدلون ورکړی. د کمونیزم له لارښوونې پرته به د چین دموکراتیک انقلاب هیڅکله بریا ته ونرسیږي، د انقلاب راتلونکی پړاؤ خو لا پر ځای پرېږده. دغه دی هغه دلیل، چې د بورژازۍ سخت دریځي په لوړو کریغو د کمونیزم د «ټولولو» غوښتنه کوي. سره د دې دغه «ټولول» په واقعیت کې ناشوني دي ، ولې همدا چې ماذې «ټول شو»، چین به ابلانی (انقیاد) ته ولاړ شي. کمونیزم د نن نړۍ لپاره لارښود ستوری دی ؛ او د ننه‌ني چین لپاره هم همداسی دی.

کوم څوک نه پوهیږي، چې د چین کمونیست ګوند د ټولنیز سیستم په اړوند دوې کړنلارې لري – اوسنۍ کړنلاره او راتلونکې کړنلاره یا لنډ مهاله کړنلاره او اوږدمهاله کړنلاره: نوې دموکراسي د اوس لپاره او سوسیالیزم د راتلونکې لپاره؛ دغه د یوه ارګانیک ټولګي دوې برخې دي او د ګرد کمونیستي آیډیالوژیک سیستم له لوري یې لارښوونه کیږي. آیا دا د بی‌عقلي لوړه څوکه نه ده، چې په لبونتوب سره چیغې وهي، چې کمونیزم باید «ټول کړو» په دې دلیل، چې د کمونیست ګوند لنډمهاله کړنلاره د خلکو درو اصلونو له سیاسي اصولو سره یوشان ده؟ مونږ کمونیستانو لپاره سم د خلکو درو اصلونو سیاسی اصولو او زمونږ د لنډ مهالې کړنلارې ترمنځ اساسي ورته والي له امله ده، چې کولای شو «د خلکو درې اصله د جاپان پر ضد د متحدې جبهې د اساسي ستنې» په توګه وپیژنو او دا ومنو، چې «د خلکو درې اصله نن د چین لپاره اړین دي او زمونږ ګوند چمتو دی، چې د هغې بشپړه پلي کولو لپاره مبارزه وکړي»؛ له دې پرته داسې امکان شتون نه لاره. متحده جبهه، کمونیزم او دخلکو درې اصله د دموکراتیک انقلاب په پړاؤ کې همدا دي. کله چې ډاکټر سون یاتسن ویل: «کمونیزم د خلکو د درو اصلونو ښه ملګری دی»[۱۰]، هغه سم همدې متحدې جبهې ته اشاره کوله. له کمونیزم څخه انکار په حقیقت کې له متحدې جبهې څخه انکار دی. سخت‌دریځي سم له همدې کبله، چې غواړي د خپل یو ګوند دکترین وکاروي او د متحدې جبهې نه انکار وکړي، له کمونیزم څخه د انکار لپاره داسې اپلتې اوبدي.

د «واحد دکترین» تیوري هم پوګه (مزخرفه) ده. تر هغې چې طبقات موجود وي، د طبقاتو په شمیر به دکترینونه هم موجود وي او ان د هرې طبقې بیلابیلې ډلې به

خپل ځانګړي دکترینونه ولري. په داسې حال کې، چې د فیوډالانو طبقه فیوډالیزم لری، بورژوازي کاپیټالیزم، بودائیان بودیزم، مسیحیان مسیحیت، بزرګران څو خدایي توب او په دې ورستیو کلونو کې دا سې خلک پیدا شوي، چې کمالیزم، فاشیزم، ویتالیزم[۱۱]، «د کار پر بنسټ د ویش دکترین»[۱۲] توصیه کوي، نو د څه لپاره پرولتاریا نشي کولای خپل کمونیزم ولري؟ په داسی حال چې بیشمیره «ایزمونه» پیدا کیږي، نو د څه لپاره یوازې د کمونیزم پر ضد چیغې وهي، چې هغه باید «ټول کړو»؟ چې ریښتیا وغواړې، دا شونی نده، چې هغه «ټول کړو». ښه ده، چې سیالي رامنځ ته شي. که کمونیزم وبایلوده، مونږ کمونیستان دا ماتې په ورین تندي منو. خو که داسی نده، پریږدئ دا «واحد دکترین» چې د دموکراسۍ اصل خلاف دی، هر څومره ژر چې کیږی، «ټول شي»!

د ناسمه پوهېدو د له منځه وړلو او د سرسختانو سترګو د پرانیستلو لپاره باید د خلکو درو اصلونو او کمونیزم تر منځ ورته والی او توپیرونه په روښانه توګه څرګند کړو.

که چېرې دوه دکترینه - د خلکو درې اصلونه او کمونیزم سره پرتله کړو، په هغې کې به ورته والی او توپیرونه وموندو.

لومړی ورته والی: دا ورته والی د چین بورژوا - دموکراتیک انقلاب پړاؤ لپاره د دواړو دکترینو په اساسي سیاسي کړنلاره کې دی. درې سیاسي انقلابې اصلونه: ناسیونالیزم، دموکراسي او د خلکو هوساینه د هغه تفسیر له مخې، چې په ۱۹۲۴م کال کې ډاکټر سون یاتسن د خلکو له درو اصلونو څخه وکړ، په بنسټ کې د چین دموکراتیک انقلاب په اړه کمونیستي سیاسي کړنلارې ته ورته دي. د همدغه ورته والي او د خلق درو اصلونو کارولو په پایله کې د دوو دکترینو او دوو ګوندونو متحده جبهه منځته راغله. دغه اړخ له پامه لیرې لرل د تیروتنو په مانا ده.

دوهم توپیرونه:

۱- د دموکرایتک انقلاب پړاؤ په اړه د دواړو کړنلارو په ځینو برخو توپیرونه. د دموکراتیک انقلاب ګرد پړاؤ لپاره سیاسي کمونیستي کړنلاره د ولسي ځواک بشپړ او تمام ټینګښت، اته ګړې (ساعته) ورځني کار او د ارضي انقلاب بشپړې کړنلارې کره پلي کول احتوا کوي، حال دا چې د خلکو درې اصله د دغو ټکو نه سوا دي. که د خلکو درې اصله په دغو موادو سره بشپړ نشي او ځان د هغو پلی کولو لپاره چمتو نکړي، د

دواړو دموکراتیکو کړنلارو ترمنځ یوازې اساسي ورته والی پاتې کېږي او نشو کولای له بشپړ ورته والي څخه خبرې وکړو.

۲- هغه توپیر، چې یو سوسیالیستي پړاو په ځان کې لري او بل یې نلري. کمونیزم د دموکراتیک انقلاب پر پړاو سربیره د سوسیالیستي انقلاب پړاو هم له ځانه سره لري، له دې امله د لنډمهالې کړنلارې سربیره اوږدمهاله کړنلاره یانې د سوسیالیستي کمونیستي ټولنیز سیستم ټینګښت هم احتوا کوي. د خلکو درې اصله یوازې د دموکراتیک انقلاب پړاو په پام کې لري او د سوسیالیستي انقلاب پړاو ضمانت نه کوي او له همدې کبله یوازې لنډمهاله کړنلاره لري نه اوږدمهاله کړنلاره، په بله وینا د سوسیالیستي کمونیستي ټولنیز سیستم د ټینګښت کړنلاره نلري.

۳- په نړۍ لید کې توپیر. کمونیستي نړۍ لید دیالکتیکي ماتریالیزم او تاریخي ماتریالیزم دی، حال دا چې د خلکو درې اصله تاریخ د خلکو د هوساینې له پلوه تشریح کوي او په ماهیت کې نړۍ لید یې دوآلیزم یا ایدیالیزم دی. پر دې بنسټ، دا دوه نړۍ لیدونه د یو بل پر ضد دربدلي.

۴ - د انقلاب په تعقیب کې توپیر. کمونیستانو لپاره د تیوري او عمل ترمنځ یووالی موجود دی یانې د انقلاب شا کلکه نیسي. د خلکو د درو اصلونو پلویانو لپاره، پرته له هغو کسانو، چې انقلاب او حقیقت ته ژمن دي، د تیوري او عمل ترمنځ یووالی شتون نلري. هغه څه چې وایي له هغه څه سره، چې کوي یې په تضاد کې دي، په بله وینا دوی د انقلاب تر شا کلک ولاړ نه دي. دغه دي د دوو دکترینو توپیرونه او همدا توپیرونه دي چې کمونیستان د خلکو د درو اصلونو له پلویانو بیلوي. دا توپیرونه له پامه لیرې ساتل، یوازې ورته والی لیدل او متضاده بڼه نه لیدل یقینن لویه تیروتنه ده.

ددې مطلب په درکولو سره به څرګنده شي، چې د بورژوازۍ سخت‌دریځي په کوم نیت د کمونیزم د «ټولولو» غوښتنه کوي. دا مسئله که د بورژوازۍ د زورواکۍ له امله نه وي له استبداد څخه سرچینه نیسي، د سلیم عقل له بشپړ او تمام نشتون څخه سرچینه اخلي.

## ۱۰- د خلکو درې زاړه اصلونه او د خلکو درې نوي اصلونه

د بورژوازۍ سرسختان په مطلق ډول له تاريخي بدلونونو څخه څه نه پوهيږي؛ د دوی معلومات په هغه کچه ټيټ دي، چې ويلای شو، هيڅ هم ندي. دوی نه د کمونيزم او د خلکو درو اصلونو تر منځ توپيرونه ويني او نه هم د خلکو درو زاړو اصلونو او د خلکو درو نويو اصلونو تر منځ توپيرونه.

مونږ کمونسيتان «د خلکو درې اصله د جاپان ضد متحدې جبهې لپاره د سياسي ستنې په توګه» منو، مونږ ددې خبرې پخلی کوو، چې «د خلکو درې اصله نن ورځ د چين لپاره اړين دی او زمونږ ګوند چمتو دی، چې د هغو بشپړه پلی کېدو لپاره مبارزه وکړي»، مونږ اعتراف کوو، چې د کمونيزم لنډمهاله کړنلاره په خپل بنسټ کې د خلکو د درو اصلونو سياسي اصولو په شان ده. خو خبره د خلکو له کومودرو اصلونو څخه ده؟ دا سم د خلکو هغه درې اصله دي، چې ډاکټر سون ياتسن «د ګوميندان د کنګرې لمړني مانيفيست» کې له هغه څخه نوی تفسير په لاس راکړي، نه د خلکو نور درې اصله.. زه هيله مند يم، چې دغه سرسخته ښاغلي يوه شيبه د خپل د کار، «د کمونيست ګوند محدودولو»، «د کمونيست ګوند انحلالولو» او «د کمونسيت ګوند پر ضد مبارزې»، له بې بريده خوند څخه لاس واخلي، تر څو لږکې ددې مانفيست پاڼې واړوي. ددې لپاره چې لږ دغه مانيفيست ولولي. پدې مانيفيست کې ډاکټر سون ياتسين وويل: «د ګوميندان له لوري د خلکو د درو اصلونو سم تفسير په همدې کې دی.» په دې بنسټ د خلکو درې واقعي اصله همدا دي او نور هر يو ناسم دی؛ د خلکو درو اصلونو څه يوازې هغه تفسير، چې د «ګوميندان د ملي کنګرې په لمړني مانيفيست» کې راغلی، «سم تفسير» دی او نور ټول تفسيرونه ناسم دي. دا په ډاګه ده، چې دا د کمونسيتانو «جعل کړي خبر» ندی، ولې چې د ګوميندان ډېري غړي او شخصن زه پخپله د دې مانفيست د تصويب شاهدان وو.

دغه مانيفيست د خلکو درو اصلونو دوو تاريخي پړاؤونو تر منځ توپير کوي. مخکې تر هغې د خلکو درو اصلونو له زړې مقولې سره تړاو لاره او په يوه نيمه مستعمره هېواد کې د زاړه بورژوا – دموکراتيک انقلاب لپاره د خلکو درې اصله، د زړې دموکراسۍ درې

اصله او د خلکو زاړه درې اصله وو.

وروسته تر هغې د خلکو درې اصله په نوې مقولې پورې تړاؤ لري، په یوه نیمه مستعمره هېواد کې د نوي بورژوا – دموکراتیک انقلاب لپاره د خلکو درې اصله، د خلکو د نوې دموکراسۍ درې اصله او د خلکو درې نوي اصله دي. یوازې د خلکو دا درې اصله، په نوي دوران کې د خلکو درې انقلابي اصلونه دي.

په نوې دوران کې د خلکو دغه درې انقلابي اصله، د خلکو درې نوي یا واقعي اصلونه درې سیاسي بنسټیز اصلونه – روسیې سره یووالی، له کمونیست ګوند سره همکاري او له بزګرو او کارګرانو څخه ملاتړ احتوا کوي. که دا درې سیاسي اصلونه او یا یو یې هم نه وي، په دې توګه په نوي دوران کې د خلکو درې اصله دروغجن او ناقصه ثابتیږي.

لمړی د خلکو درې انقلابي اصلونه، د خلکو نوي یا واقعي اصلونه باید له روسیې سره یووالی احتوا کړي. په اوسني حال کې که له روسیې سره یووالی، د سوسیالیستي دولت سره یووالی د منښې وړ ونه ګرځي، جبرن له امپریالیزم سره د یووالي اصل باید پر مخه یوړل شي، جبرن امپریالیستی ځواکونو سره به یووالی پلی شي. آیا موږ له ۱۹۲۷م څخه وروسته د داسې وضعې شاهدان نه وو؟ په هغه موکه، چې د سوسیالیستي شوروي اتحاد او امپریالیزم تر منځه مبارزه لا ډېر شدت مومي، چین باید په دې خوا یا په بلې خوا کې ودرېږي، دا نه ډډه منونکی تمایل دی. آیا شونې ده، چې دې لور یا بل لوري ته لېوال نشی؟ نه دا یوه بې مانا انګېرنه ده. ټوله نړۍ به له دغه دوه جبهو څخه یوې ته راکاږل کیږي؛ له دې وروسته «بې خواتوب» په نړۍ کې غولونکی ټکی دی. په سر کې د چین لپاره، چې د هغه امپریالیستي ځواک پر ضد، چې د هغه په خاوره کې یې ژور رسوخ کړی، مبارزه کوي، د شوروي له مرستې پرته د پای بریا لپاره کومه هیله نشته. که چېرې امپریالیزم سره یووالی د شوروي سره یووالي پر ځای کښېني، باید د خلکو له درو اصلونو څخه د «انقلابي» ټکی لیرې کړو، په دې توګه به دا درې اصله ارتجاعي خصلت ځان ته ونیسي. د شننې په پای کې باید ووایو، چې د خلکو درې «بې خوا» اصله شتون نلري او درې اصله کېدای شي، انقلابي یا انقلابي ضد واوسي. که دهغه فورمول پر بنسټ، چې وان جین وي پخوا وړاندې کړ، «په دوو جبهو کې په مبارزې»[۱۳] لاس پورې وهل شي او که کېدای شوای، چې «په ددو جبهو کې د مبارزې» لپاره د

خلکو درې اصله شتون ولري، آیا دا به یو اتلوالی نه وي؟ خو په افسوس سره، چې د هغې مخترع وان جین وی هم هغه خوشې کړې ده (یا «یې تغر ټول کړی دی»)، هغه له امپریالیزم سره د یووالي لپاره د خلکو درې اصله منلي دي. که وویل شي، چې د امپریالیستانو په منځ کې د ختیځ او لویدیځ امپریالیستانو تر منځ توپیر شتون لري او که هغه د ختیځ له امپریالیستانو سره یووالی تړي او موږ د هغه په خلاف د لویدیځ یو شمېر امپریالیستانو سره یووالی تړو او وروسته د ختیځ په لوري یرغل کوو، آیا دا یو انقلابي تګلاره نه ده؟ خو سره له دې چې وغواړی او که نه د لویدیځ امپریالیستان غواړي، چې د شوروي اتحاد او کمونیست ګوند پر ضد مبارزه وکړي، که تاسو له هغو سره یووالی تړلی، دوی به له تاسو وغواړي، چې د شمال په لوري یرغل وکړی، او ستاسو انقلاب به کوم ځای ته ونه رسېږي. په دې شرایطو کې د خلکو درې انقلابي، نوي یا واقعي اصلونه په اړینه توګه له روسیې سره د یووالي لپاره د خلکو درې اصلونه دي او نه د روسیې پر ضد له امپریالیستانو سره د یووالي لپاره د خلکو درې اصلونه.

دوهم د خلکو درې انقلابي، نوي یا واقعي اصلونه، باید د کمونیست ګوند سره همکاري احتوا کړي. تاسو له کمونیست ګوند سره یا همکاري وکړی او یا مبارزه. د کمونیست ګوند پرضد مبارزه د امپریالیستانو او د وان جین وي سیاست دی؛ که تاسو غواړی، چې د کمونیست ګوند پر ضد جګړې ته راپاڅی، ډېر ښه، دوی به له تاسو بلنه وکړي، چې د هغو له «کمونیستي ضد شرکت» سره یوځای شی. پدې توګه آیا تاسو ولس ته په خیانت تورن نه یاست؟ کېدای شي ووایاست: «زه د جاپان تر شا نه بلکه د نورو هیوادنو تر شا روانېږم.» دا هم ملنډیزه ده. تر هغه وخته چې تاسو کمونیست ضد اوسی، د هر چا تر شا چې روان شئ، ولس ته خاین یاست، ځکه چې نور نشئ کولای د جاپان پرضد مبارزه وکړی. او که هغسې ووایاست، چې: «زه په خپلواکه توګه د کمونیست ګوند پرضد مبارزه کوم.» دا اپلتې غږول دي. د مستعمرو او نیمه مستعمرو «اتلان» څنګه کولای شي، پرته له دې چې په امپریالیستې ځواکونو تکیه وکړي، په هسې لوی انقلابي ضد اقدام لاس پورې کړي؟ په تیر وخت کې د نړۍ نږدې ټول امپریالیستي ځواکونه غونډ شول او لس کاله یې د کمونیست ګوند پرضد جګړه وکړه، خو کوم ځای ته ونه رسیدل، اوس څنګه کولای شو، ناځاپه «په خپلواکه توګه» د هغه پرضد مبارزه وکړو؟

ځنې زمونږ د سرحدي سیمې نه بهر وايې: «د کمونیست ګوند پرضد مبارزه ښه ده، خو بریا په هغې کې ناشونې ده.» که دا خبره کومه ګونګوسه نه وي، نو یواځې نیمایي یې ناسمه ده، «د کمونیست ګوند پرضد مبارزه» کوم «ښه» شی منځ ته راوړي؟ خو بله نیمایي یې سمه ده، «کمونیست ګوند پرضد مبارزه» واقعن داسې څه دي، چې «بریا هغه کې ناشونې ده». ددې وضعیت دلیل په عمده ډول په کمونیست ګوند کې ندی، بلکه په عامو خلکو کې دی، ځکه چې عام خلک له کمونیست ګوند سره مینه لري، نه دا چې پرضد یې مبارزه وکړي. که تاسو پداسې شیبه کې، چې دښمن زمونږ په خاوره کې ژور نفوذ کړی، د کمونیست ګوند پرضد مبارزې ته لاس واچوی، عام خلک به ستاسو کار جوړ کړي او له تاسو سره به د ترحم ځینې کار وانخلې. هیڅ شک نشته، که څوک وغواړي د کمونسیت ګوند پرضد مبارزه وکړي، باید چمتو وي، چې له خاورو سره یو شي. که تاسو غواړئ له دارنګه برخلیک سره مخ نشئ، هغه وخت په رښتیا سره ښه ده، چې له دې ډول مبارزې څخه لاس په سر شئ. دا یوه دوستانه توصیه ده، چې مونږ یې د کمونیست ضد ګردو «اتلانو» ته کوو. پدې توګه هېڅ څه هم له دې څخه ښکاره نه دي، چې د خلکو اوسني درې اصله باید د کمونیست ګوند سره همکاري احتوا کړي، ګوندې په له منځه تللو محکوم دي. دغه ټکې د خلکو درو اصلونو لپاره د مرګ او ژوندانه مسئله ده: د کمونیست ګوند سره مرستې په اساس په همکارئ کې به د خلکو درې اصله ژوندې پاتې شي، او د کمونیست ګوند پرضد د مبارزې په اساس پایله کې به د خلکو درې اصله له منځه لاړ شي. څوک کولای شي، چې اپوټه (برعکس) یې په زبات (ثبوت) ورسوي؟

دریم، د خلکو درې انقلابي، نوې یا واقعي اصله د بزګرانو او کارګرانو سره همکاري باید احتوا کړي. که تاسو د داسې اصل غوښتونکي نه یاست، که تاسو نه غواړئ له کارګرانو او بزګرانو سره د زړه له کومې او د ریښتینولئ له مخه مرسته وکړئ، که تاسو نه غواړئ د «خلکو راپارول»، چې د «ډاکټر سون یاتسین په وصیتنامه» کې ځای شوي پلي کړئ، تاسو خپلې ماتې او د انقلاب ماتې ته لار هواروی. ستالین ویلي : «ملي مسئله په واقعیت کې یوه بزګریزه مسئله ده.»(۱۴) دا پدې مانا ده، چې د چین انقلاب په واقعیت کې یو بزګریز انقلاب دی، او د جاپان پرضد اوسنئ مبارزه یوه بزګریزه مبارزه ده.

د نوې دموکراسۍ سیاست په واقعیت کې بزګرانو ته د واک سپارل دي. د خلکو نوي یا واقعي درې اصله په واقعیت کې د بزګریز انقلاب دکترین دی. د پرګنو یا ولسونو فرهنګ په واقعیت کې د بزګرانو د فرهنګي کچې لوړول دي. د جاپان ضد د مقاومت جګړه په واقعیت کې یوه بزګریزه جګړه ده. نن مونږ پداسې وخت کې ژوند کوو چې «غره ته د ختلو اصل»[۱۵] د پلي کوولو وړ دی، په غره کې غونډې نیول کېږي، کار ترسره کېږي، درسي ټولګې ترتیبیږي، ورځپاڼې چاپیږي، کتابونه لیکل کېږي، د تیاتر تمثیلونه پلي کېږي ــ دغه ټول په واقعیت کې د بزګرو لپاره دي. ټول هغه څه چې د جاپان ضد مقاومت جګړې کې ورله اړتیا ده او ان زمونږ د ژوندانه اړتیاوې بزګران برابروي. کله چې وایو «په واقعیت کې» موخه مو په بنسټ کې ده، په هغه توګه چې سټالین پخپله روښانه کړې، دا په دې مانا نده چې نور لاملونه له پامه غورځول کېږي. د چین ۸۰ سلنه وګړې بزګران جوړوي، په دې ان د لمړني ښوونځي زده کوونکي هم پوهیږي. له دې کبله د بزګرو مسئله د چین د انقلاب بنسټیزه مسئله شوې او د بزګرانو ځواک د چین د انقلاب عمده ځواک جوړوي. له بزګرو وروسته کارګران د چین په اوسېدونکو کې دویم مقام لري. چین څو میلیونه صنعتي کارګرانو او لسګونه میلیونه کسبه کار او د کرهڼې کارګران لري. چین نشې کولای د بیلابیلو صنایعو له کارګرانو پرته خپل ژوند ته ادامه ورکړي، ځکه هغوی زمونږ د اقتصاد د صنعتي برخې تولید کوونکي دي. د مدرنه صنعتي کارګرانو له طبقې پرته انقلاب برى نشي موندلای، ځکه چې دغه طبقه د چین د انقلاب مشري لري او تر ټولو زیاته د انقلابي کېفیت خاونده ده. په داسې شرایطو کې د خلکو درې انقلابي، نوې یا واقعې اصله باید د کارګرو او بزګرو د سیاسي ملاتړ اصل احتوا کړي. که د خلکو درې اصله د داسې اصل درلودونکې نه وي، بزګرو او کارګرو ته د زړه له کومې او په ریښتینې توګه یاري ونه رسوي، او «پرګنو راپارول» پلي نکړي، له ورکېدو سره به مخ شي.

له دې کبله کولای شو پایله واخلو، چې د خلکو هغه درې اصله، چې له سیاسي اساسي درې اصلونو، لکه د روسیې سره له یووالي ، د کمونیست ګوند سره له همکارۍ او کارګرو او بزګرو له ملاتړڅخه منحرف شي، راتلونکې نلري. د خلکو د درو اصلونو هر با وجدانه پلوی باید په جدي توګه پدې ټکي فکر وکړي.

د خلکو دغه درېٖ اصله چې سیاسي اساسي درېٖ اصله پکې شامل دي، د خلکو درې انقلابي، نوې یا واقعي اصله هماغه د خلکو د نوې دموکراسۍ درې اصله دي، د خلکو زاړو درو اصلو تکامل دی، د ډاکټر سون یاتسین لوی سهم او د هغه دوران محصول دی، چې په هغه کې د چین انقلاب د نړۍ سوسیالیستي انقلاب په یوې برخې اوښتی دی. یواځې د خلکو همدا درې اصله دي، چې د چین کمونیست ګوند یې «نن د چین لپاره اړین» تشخیصوي او اعلان کوي چې «چمتو دی د هغې بشپړه پلی کولو لپاره مبارزه وکړي»؛ یواځې د خلکو همدا درې اصله دي، چې د چین د کمونیست ګوند د سیاسي کرښلارې سره د دموکراتیک انقلاب په پړاؤ کې یا د هغه لنډمهالې کرښلارې سره بنسټیز ورته والی لري.

خو د خلکو زاړه درې اصله د چین د انقلاب د زاړه دوران لاسته راوړنه وه. هغه مهال روسیه امپریالیستي روسیه وه او په طبیعي توګه روسېې سره د یووالی سیاسي اصل شونی نه ؤ؛ په همدې ډول هغه مهال په چین کې کمونیست ګوند شتون نه لاره او په طبیعي توګه د کمونیست ګوند سره د همکارۍ سیاسي اصل شونی نه ؤ؛ هغه وخت د بزګرو او کارګرو غورځنګ په بشپړه توګه خپل سیاسي اهمیت نه ؤ څرګند کړی او د خلکو پام یې ځان ته نه وه رااړولی، او په طبعیي توګه د کارګرو او بزګرو سره د یووالي سیاسي اصل نا شونی و. له دې کبله په ۱۹۲۴م کې د ګومیندان د سازمان له نوی کولو(تجدید) څخه مخکې د خلکو درې اصله له زړې مقولې څخه وو، یانې د خلکو هغه درې اصله وو، چې زاړه شول. که د خلکو هغو درې اصلونو د خلکو نویو درو اصولو ته تکامل موندلی نه وای، ګومیندان پرمختګ کولای نشو. ډاکټر سون یاتسن په خپل عقل او هوښیارتیا سره دې ټکي ته ورسېده، او د شوروي اتحاد او د چین د کمونیست ګوند له مرستې نه برخمند شو، د خلکو له درو اصلونو څخه یې نوی تفسیر په لاس راکړ، او هغه ته یې نوې تاریخي ځانګړتیا ورکړه؛ په پایله کې د خلکو درو اصلونو له کمونیزم سره متحده جبهه رامنځته شوه، د ګومیندان او د کمونیست ګوند تر منځ لومړنۍ همکاري رامنځته شوه، د ټول هیواد د خلکو ملاتړ جلب شو او د ۱۹۲۴م څخه تر ۱۹۲۷م کلونو انقلاب را وخوځېده.

درې زاړه اصله په تیر دوران کې انقلابي وو او دخپل دوران تاریخي ځانګړتیاوې یې

منعکسولې. خو که په نوي دوران کې، کله چې د خلکو درې نوي اصلونه ټینګ شوي، او هغه زړه تګلاره تکرار شي، که د سوسیالیستي دولت له رامنځته کېدو وروسته د روسیې سره د یووالي مخالفت وشي، که د کمونیست ګوند له جوړېدو وروسته د کمونیست ګوند سره له همکارۍ انکار وشي، که وروسته له دې چې کارګرانو او بزګرانو پوهه تر لاسه کړې او په یو لوی سیاسي ځواک بدل شوي، د بزګرانو او کارګرانو سره د ملاتړ سیاسي اصل رد شي، پدې توګه دا یو ارتجاعي چلند دی، چې د خپلې زمانې څخه د بی خبرۍ یوه نښه ده. د ۱۹۲۷م څخه وروسته د ارتجاع ټینګېدل د زمانې څخه د همدې بې خبرۍ پایله ده. یو متل دی چې وایې : «اتل هغه څوک دی، چې د خپلې زمانې غوښتنې درکوي.» زه هیله مند یم چې د خلکو د درو اصلو پلویان به دغه پند په یاد وساتي.

هر کله چې له زړې مقولې د خلکو درې اصله په نظر کې نیول کېږي، بنسټیز ډول د هغو او د کمونیزم لنډمهالې کړنلارې تر منځ ګډه وجه شتون نلري، ځکه هغه د تیر وخت سره تړاو لري او زاړه شوي. که د خلکو درو اصلونو کوم ډول د روسیې او د کمونیست ګوند او بزګرو او کارګرو پر ضد مبارزه وکړي، هغه نور ارتجاعی ده، چې نه یوائې دا چې د کمونیزم له لنډمهالې کړنلارې سره کومه ګډه وجه نلري، بلکه د کمونیزم سره د کست له لارې مخکې کېږي، نو پدې بنسټ د هغې په اړه د بحث کومه اړتیا نشته. د خلکو د درو اصلونو ملاتړې پدې هکله هم باید فکر وکړي.

په اوسني حال کې، تر هغې موکې پورې، چې د امپریالیزم او د فیوډالیزم پر ضد د مبارزې دنده پای ته رسیدلې نده، هیڅ یو با وجدانه انسان به د خلکو نوي درې اصله خوشې نه کړي، هغه څوک چې د خلکو نوي درې اصله خوشې کوي، یوائې وان جین وی او د ده په شانې خلک به وي. سره له هغې، چې دوې په ګرده سر سختۍ سره روسیې ضد، کمونیستي ضد، دهقاني او کارګري ضد درواغجنه درې اصله پرمخ بیایې، خو سره له هغه به با وجدانه او په عدالت مین خلک پیدا شي، چې د سون یاتسین له خوا مطرح شویو د خلکو واقعې درې اصلونو څخه به ملاتړ وکړي. که دا سمه ده، چې په ۱۹۲۷م کې د ارتجاع له ټینګښت څخه وروسته لا د خلکو واقعې درو اصلونو ډیرکی ملاتړي وو، چې د چین د انقلاب په لاره کې یې خپلو مبارزو ته ادامه ورکوله، اوس چې د ولس دښمن زمونږ په خاوره کې نفوذ کړی، پرته له شکه د دغه ډول خلکو شمیر

به په زرګونو بر شي. مونږ کمونیستان به د خلکو د درو اصلونو له ریښتینو پلویانو سره په پرلپسې ټوګه خپلې اوږدې همکارۍ ته دوام ورکړو او پداسې حال کې، چې ولس ته خاینانو او د لاعلاجه کمونیست ضدو خلکو په ټېر د رد لاس وهو، هیڅ یو ملګری به خوشې نکړو.

## ۱۱- د نوې دموکراسۍ فرهنګ

مونږ پورته په اوسني دوران کې د چین د سیاست تاریخی ځانګړتیاوې او همدا راز د نوې دموکراسۍ د جمهوریت مسئله روښانه کړه. اوس کولای شو د فرهنګ مسئله وڅیړو.

یو ټاکلی فرهنګ په یوې ټاکلې ټولنه کې په ایډیالوژیک لحاظ د یوه ټاکلي سیاست او اقتصاد آزانګ (انعکاس) دی. په چین کې یو امپریالیستي فرهنګ شتون لري، چې په سیاسي او اقتصادي برخو کې پر چین باندې د امپریالیزم د بشپړې او یا برخه ایزې سلطې آزانګ دی. دا فرهنګ نه یوازې هغه فرهنګي سازمانونه، چې په چین کې د امپریالیستانو له لوري اداره کېږي، بلکه یو شمیر بې‌شرمه چینایان یې هم ترویجوي. هر ډول فرهنګ چې بندیوان افکار ولري، په دې مقوله کې راځي. په چین کې یو نیمه فیوډالي فرهنګ هم شتون لري، چې د نیمه فیوډالي سیاست او اقتصاد آزانګ دی، او ټول هغه خلک چې د کنفسیوس لمانځل، د کنفسیوس د مکتب د درسونو لوستل، د زاړو اخلاقي اصولو او زاړو افکارو توصیه او تبلیغ کوي، او د نوي فرهنګ او نویو افکارو پر ضد ودریږي، ددغه ډول فرهنګ استازي دي. امپریالیستي فرهنګ او نیمه فیوډالي فرهنګ د دوه خوږو وروڼو په څیر دي، چې پخپلو کې یې ارتجاعي یووالی ټینګ کړی، تر څو د چین له نوي فرهنګ سره مبارزه وکړي. دا ډول ارتجاعي فرهنګونه د امپریالیزم او فیوډال طبقې په چوپړ کې دي او باید را وپرځول شي. که هغه را ونه پرځول نشي، د هر ډول نوي فرهنګ جوړول ناشوني دي. له نړولو پرته جوړول نشته، له بندولو پرته بهیر نشته؛ ددغه دوه ډوله فرهنګونو تر منځ مبارزه د مرګ او ژوند مبارزه ده.

هغه څه چې په نوي فرهنګ پورې اړه لري، دا فرهنګ په آیډیالوژیک لحاظ د نوي

سیاست او نوي اقتصاد آزانګ او ددوی په چوپړ کې دی.

لکه څرنګه مو چې په دریمه برخه کې روښانه کړه، په چین کې د پانګوالۍ اقتصاد د پیدایښت راهیسې د چین ټولنه لږ لږ د بدلون سره مخ شوه، دا ټولنه اوس بشپړه فیوډالي ټولنه نده، بلکه په یوه نیمه فیوډالي ټولنه بدله شوې ده، سره له هغې، چې فیوډالي اقتصاد لا تر اوسه هم برلاسی دی. د پانګوالۍ دا اقتصاد د فیوډالۍ اقتصاد پرتله د نوي اقتصاد په توګه دی. هغه نوي سیاسي ځواکونه چې د پانګوالۍ له نوي اقتصاد سره رامنځ ته شوي او وده کوي، د بورژوارۍ، وړوکې بورژوازۍ او پرولتاریا له سیاسي ځواکونو څخه عبارت دي. او نوی فرهنګ په آیډیالوژیک لحاظ د نوي سیاسي او اقتصادي ځواکونو آزانګ دی او د هغوی په چوپړ کې وي. له پانګوال اقتصاد پرته، له بورژوازۍ، وړوکې بورژوازۍ او پرولتاریا پرته، ددې طبقو له سیاسي ځواکونو پرته، نوې ایډئالوژي او یا نوی فرهنګ منځ ته نشو راتلای.

نوي سیاسي، اقتصادي او فرهنګي ځواکونه ټول د چین انقلابي ځواکونه دي، چې د زاړه سیاست، زاړه اقتصاد او زاړه فرهنګ پر ضد درېږي. دغه زاړه شیان دوې برخې لري: یو د چین خپل نیمه فیوډالي سیاست، اقتصاد او فرهنګ؛ او بل امپریالیستي سیاست، اقتصاد او فرهنګ او د دواړو په یووالي کې مشري له دویم سره ده. دا ټول بد دي او باید له ولۍ (ریشه) راوویستل شي. د چین په ټولنه کې د نوي او زاړه تر منځ مبارزه، د خلکو نویو ځواکونو (ټولو انقلابي طبقو) او امپریالیستانو او فیوډالانو زړو ځواکونو تر منځ مبارزه ده. د زاړه او نوی تر منځ دا مبارزه د انقلاب او انقلاب ضد ترمنځ مبارزه ده. که چېرې د تریاکو له جګړې راپدیخوا حساب شي، دا مبارزه سل کاله کېږي، چې دوام لری او که د ۱۹۱۱م انقلاب څخه حساب شي، نږدې دیرش کاله یې کېږي.

خو لکه څنګه مو چې پورته وویل، انقلابونه هم کولای شو په نویو او زړو وویشو، هغه څه چې د تاریخ په یوه پړاؤ کې نوی وي، د تاریخ په بل پړاؤ کې زړېږي. د چین سل کاله بورژوا – دموکراتیک انقلاب کولای شو په دوو ستر پړاوونو وویشو: لومړي اتیا کاله او شل وروستي کلونه. له دغو دواړو سترو پړاوونو څخه هر یو ځانته یوه تاریخي ځانګړتیا لري، پدې توګه، چې د چین بورژوا – دموکراتیک انقلاب لومړي اتیا کلونه له زړې مقولې سره تړاو لري، په داسې حال کې چې په وروستیو شلو کلو کې د کورنۍ او بهرنۍ سیاسي

اوضاع د بدلون له امله، انقلاب له نوې مقولې سره تړاو لري. زړه دموکراسي – د لومړيو اتيا کلونو ځانګړتيا وه. نوې دموکراسي – د ورستيو شلو کلونو ځانګړتيا ده. دغه توپير هم په سياسي برخه او هم په فرهنګي برخه کې ريښتينی دی.

دغه توپير په فرهنګي برخه کې په څه توګه څرګنديږي؟ دا هغه څه دي چې مونږ يې لاندې روښانه کوو.

## ۱۲- د چين د فرهنګي انقلاب تاريخي ځانګرتياوې

د چين په ايډيالوژيک يا فرهنګي مرچل کې، د مې له ۴م غورځنګ نه مخکې پړاؤ او هغه پړاؤ چې تر هغه وروسته رامنځ ته کيږي، يو له بله دوه جلا تاريخي پړاؤنه دي.

د مې له ۴م غورځنګ نه مخکې د چين په فرهنګي جبهه کې د نوي بورژوازي فرهنګ او د زاړه فيوډالي فرهنګ تر منځ مبارزه وه. د مې له ۴م غورځنګ نه مخکې د مدرنو ښونځيو سيستم او د امپراطورۍ آزموينو[۱۶] د سيستم تر منځ، د نويو زده کړو او پخوانيو زده کړو تر منځ، د لويديځ د زده کړو او د چينايي زده کړو ترمنځ، ټولو دا رنګه ځانګړتيا لرله. د مدرن مدرسو له سيستم څخه موخه، په هغه وخت کې نوې يا لويديځې زده کړې وې، په خپل بنسټ کې (مونږ چې وايو «په خپل بنسټ کې» ولې چې لا هم د چين زهرجنې پاتې شونې (بقايا) په هغو کې ګډې وې) عبارت و له طبعي علومو او د بورژوازۍ ټولنيزو - سياسي تيوريو څخه، چې د بورژوازۍ استازو ورته اړتيا درلودله. په هغه وخت کې د نويو زده کړو دې ايډيالوژۍ د چين د فيوډالي ايډيالوژۍ پر ضد مبارزه کې انقلابي رول لوباوه او په زاړه دوران کې د چين بورژوا - دموکراتيک انقلاب په چوپړ کې وه. سره له دې له هغه ځايه چې د چين بورژوازي کمزورې وه او نړۍ د امپرياليزم دوران ته رسيدلې وه، د بورژوازۍ دغه ايدياليوژۍ ډګر ته له راتلو وروسته يوازې هومره ځواکمنه وه، چې يو څو ضربې واردې کړي او ډير ژر د بهرني امپرياليزم د مريه جنو افکارو او د چين شاته ستنېدونکو فيوډاليستي افکارو د ارتجاعي پيوستون لخوا شاته وتمبول شي. دې ارتجاعي ايډيالوژيکي اتحاد چې کله ماذې متقابل کوچنی بريد پيل کړ، دغه په اصطلاح نويو زده کړو سملاسي خپلې جنډې را ښکته کړې، د خپلو نغارو غږونه

یې غلي کړه، د شا تګ زنګ یې وغږاوه، روح یې له لاسه ورکړ او هغه څه، چې ترې پاتې شول، یواځې بهرنی قالب ؤ. زوړ بورژوا ـ دموکراتیک فرهنګ د امپریالیزم په دوران کې کمزوری او خوسا شو، او ماته یې نه ډړه کېدونکې شوه.

خو د مې د ۴م له غورځنګ راهیسې وضعیت نور داسې نه ؤ. د مې د ۴م له غورځنګ څخه وروسته په چین کې یو بشپړ نوی فرهنګي ځواک رامنځته شو او هغه کمونیستي فرهنګي فکرونه دي، چې د چین کمونیستان یې لارښوونه کوي، په بل عبارت دغه فرهنګي ځواک هماغه کمونیستي نړۍ لید او د ټولنیز انقلاب تیوري ده. د مې د ۴مې غورځنګ په ۱۹۱۹م کال کې رامنځته شو، د چین د کمونیست ګوند جوړېدل او د کارګري غورځنګ ریښتیني پیل په ۱۹۲۱م کال کې رامنځته شو ـ دغه ټول د لومړۍ نړیوالې جګړې او د اکتوبر له انقلاب څخه وروسته رامنځته شول، یانې هغه موکه، چې په نړیواله کچه ملي مسئله او په مستعمرو کې انقلابي غورځنګ ځان ته نوې بڼه غوره کوله، او پدې اړوند د چین انقلاب او نړیوال انقلاب تر منځ اړیکه په بشپړه توګه څرګنده وه. د نویو سیاسي ځواکونو د منځ ته راتلو په سیوري کې ـــ د چین پرولتاریا او د چین کمونیست ګوند ـ د چین په سیاسي ډګر کې، دغه نوي فرهنګي ځواک په نویو جامو کې او په خپلو نویو وسلو سره ټول ممکن متحدین راغونډ کړل، د جګړې نظام او نظم یې ځان ته ورکړ او د امپریالیستي او فیوډالي فرهنګ پر ضد یې زړور برید پیل کړ. دغه نوي ځواک په ټولنیزو علومو، ادبیاتو او هنر له فلسفې نېولې تر اقتصادي، سیاسي، پوځي او تاریخي علومو او د ادبیاتو او هنر (تیاتر، سینما، موزیک، مجسمه جوړولو او انځورګرۍ) په ډګر کې ډېره وده وکړه. د دغو وروستیو شلو کلونو په لړ کې چې دغه نوي فرهنګي ځواک هر چېرې برید وکړ، څه په ایډیالوژیک مضمون کې او څه هم په شکل (د ژبې لیکلی شکل او داسې نورو) کې یې یو ستر انقلاب راپارولی دی. د اغیز لمن یې هومره پراخه او ضربې یې هسې ځواکمنې وې، چې پر هغه باندې لاسبرى عملن ناشونی ؤ. هغه ځواکونه چې دغه فرهنګ چمتو کړل، د چین په ټول تاریخ کې د غزېدلې لمن په لحاظ بې سارې دی. لوسیون ددغه نوې فرهنګي ځواک تر ټولو لوی او تر ټولو بې باکه بیرغ وړونکی دی. لوسیون د چین د فرهنګي انقلاب عالي قوماندان دی؛ هغه نه یواځې یو لوی ادیب دی، بلکه یو ستر متفکر او لوی انقلابي دی. لوسیون هسې سړی دی،

چې هغه يې تر ټولو ځواکمن کلک دی، او د هر راز مریه توب او غوړه مالۍ نه سوا(عاری) دی، او دا صفت د مستعمرو او نیمه مستعمرو خلکو لپاره خورا ارزښتناکه دی. لوسیون په فرهنګي جبهه کې د ولس د ستر اکثریت د استازي په توګه د غلیم په مرچل باندې یرغل کې تر ټولو سم، تر ټولو زړور، تر ټولو کلک، تر ټولو هوډمن او، تر ټولو خوځنده ملي اتل دی، چې تاریخ یې ساری ندی لېدلی. هغه لوری، چې لوسیون په مخه کړ، د چین ولس د نوي فرهنګ لوری دی.

د مې د ۴م له غورځنګ څخه مخکې د چین نوی فرهنګ د زړې دموکراسۍ د فرهنګ یو ډول او د پانګه والې بورژوازۍ د نړیوال فرهنګي انقلاب یوه برخه وه. د مې د ۴م له غورځنګ څخه ورسته د چین نوی فرهنګ د نوې ډول دموکراسۍ له فرهنګ څخه یو او د سوسیالیستي پرولتاریا د نړیوال فرهنګي انقلاب یوه برخه ده.

د مې د ۴م له غورځنګ څخه وړاندې د چین نوی فرهنګي غورځنګ او د چین فرهنګي انقلاب د بورژوازۍ په وزله (وسیله) یې لارښوونه کېدله، چې لا یې هم د مشرۍ رول لوبولو. د مې د ۴م له غورځنګ څخه وروسته ددغه طبقې فرهنګي فکرونه ان د هغې له سیاست څخه هم وروسته پاتې شول او د مشرۍ لپاره یې هر ډول وړتیا له لاسه ورکړه، په انقلابي دوران کې یې کولای شول تر ډېره بریده تر یوې کچې پورې د یو غړي په توګه په یووالی کې ګډ شي، چې مشري یې هرومرو د پرولتاریا فرهنګي فکرونو په مټ واچول شوه. دا واقعیت لکه د ورځې روښان دی، چې هیڅ څوک ترې منکرېدی نشي.

د نوې دموکراسۍ له فرهنګ څخه موخه، د خلکو د پرګنو امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد فرهنګ دی او نن ورځ د جاپان ضد متحدې جبهې فرهنګ دی. د دغه فرهنګ لارښوونه یواځې د پرولتاریا فرهنګي فکرونه یانې کمونیستي ایډیالوژي کولای شي. د مشرۍ دا نقش د بلې هیڅ طبقې فرهنګي فکرونو لخوا نشې تر سره کېدلای. د نوې دموکراسۍ له فرهنګ څخه موخه، په لنډ ډول د پرولتاریا تر مشرۍ لاندې د خلکو د پرګنو امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد فرهنګ دی.

## ۱۳ ــ څلور پړاوه

فرهنګي انقلاب، په ایډیالوژیک لحاظ د سیاسي انقلاب او د اقتصادي انقلاب آزانګ (انعکاس) دی او د هغو په چوپړ کې دی. په چین کې د فرهنګي انقلاب په ډګر کې هم لکه د سیاسي انقلاب په څېر یوه متحده جبهه شتون لري.

د دغې متحدې جبهې تاریخ په فرهنګي انقلاب کې پدې وروستیو شلو کلو کې په څلورو پړاوونو ویشل کېږي: لومړی پړاؤ دوه کاله اوږد دی، له ۱۹۱۹م څخه تر ۱۹۲۱م پورې، دویم پړاؤر شپږ کاله، له ۱۹۲۱م څخه تر ۱۹۲۷م پورې، دریم پړاؤ لس کاله، له ۱۹۲۷م څخه تر ۱۹۳۷م پورې او څلورم پړاؤ درې کاله، له ۱۹۳۷م څخه تر اوسني وخته پورې.

لومړی پړاؤ د ۱۹۱۹م کال د مې د ۴م له غورځنګ څخه په ۱۹۲۱م کې د چین کمونیست ګوند تر جوړېدو پورې غزیږي. د مې د ۴مې غورځنګ د دې دورې اصلي ځانکړنه ده.

د مې د ۴مې غورځنګ یو امپریالیستي ضد او په همدې توګه یو فیوډالي ضد غورځنګ دی. د ده تاریخي ورېت اهمیت پدې کې دی، چې دا غورځنګ هسې ځانګړتیا لري، چې د ۱۹۱۱م انقلاب یې نلري، یانې د امپریالیزم او فیوډالیزم پر ضد شانیونکې (پیګیر) او نه ژغورېدونکې مبارزه. که د مې د ۴مې غورځنګ دارنګه ځانګړتیا لري، د دې لپاره ده، چې په هغه وخت کې د چین پانګوال اقتصاد یو ګام په وړاندې اخیستی ؤ او د چین انقلابي روڼآندي، چې د درو سترو امپریالیستي ځواکونو روسیې، آلمان او اتریش (هنګری) د نسکورېدو او د فرانسې او انګلستان په شان د دوو سترو امپریالیستي ځواکونو کمزورېدو او د روسیې پرولتاریا په لاس د یوه سوسیالیستی دولت د تأسیس او د آلمان، اتریش او ایټالیا پرولتاریایي انقلاب شاهدان وو، د چین د ولس آزادۍ لپاره یې نوې هیله پیدا کړه. د مې د ۴مې غورځنګ د وخت نړیوال انقلاب په بلنه، د روسیې انقلاب په بلنه، د لنین په بلنه رامنځته شو. د مې د ۴مې غورځنګ په خپل وخت کې د نړیوال پرولتاریایي انقلاب یوه برخه وه. سره له دې چې د مې د ۴مې غورځنګ په وخت کې د چین کمونیست ګوند لا شتون نه لاره، خو بیا هم په هغه زمانه کې ډېر روڼآندي وو، چې د

روسیې انقلاب یې تأییدولو او تازه له کمونیستي ایډیالوژي سره اشنا کېدل. د مې د ۴مې غورځنګ په پیل کې د درې ګونو عناصرو څخه مرکبې متحدې جبهې څخه عبارت وه: کمونیست روڼآندي، د وړوکې بورژوازۍ انقلابي روڼآندي او د بورژوازۍ روڼآندي (وروستي روڼآندو د وخت د غورځنګ ښي اړخ جوړاوه). د دغه غورځنګ ضعیف ټکې دا ؤ، چې یواځې روڼآندو پورې محدود ؤ او کارګرو او بزګرو پکې ګډون نه لاره. خو کله چې د مې د ۴مې غورځنګ د جون ۳مې[۱۷] غورځنګ ته تکامل وموند، نه یواځې روڼآندي په کې وو، بلکه د پرولتاریا پراخه پرګنې، وړوکې بورژوازۍ او بورژوازۍ هم پکې ګډون لاره، چې په پایله کې په ملي کچه یې د یو انقلابي غورځنګ بڼه ځان ته ونیوه. د مې د ۴مې د غورځنګ  فرهنګي انقلاب هغه غورځنګ دی، چې له فیوډالي فرهنګ سره له بنسټه متضاد دی، او چین په خپل ګرد تاریخ کې دارنګه ستر او شانیونکی فرهنګي انقلاب نه ؤ لیدلی. د دوه سترو بیرغونو په اوچتولو ــ د زړو اخلاقو پر ضد مبارزې او د نویو اخلاقو په توصیې، د زړو ادبیاتو پر ضد مبارزې او د نویو ادبیاتو په توصیې ــ سره د وخت فرهنګي انقلاب خپله وړه ونډه اخیستې ده. سره د دې په هغه وخت کې دغه فرهنګي غورځنګ لا امکان نه لاره، چې د کارګرو او بزګرو پرګنو په منځ کې پراخ وغزېږي. سمه ده چې، دغه غورځنګ «د عام خلکو لپاره یې د ادبیاتو» شعار ورکړ، خو د «عام خلکو» نه موخه د ښاري وړوکې بورژوازۍ او بورژوازۍ یعنی د هغه وخت ښاري روڼآندو پرته بل څوک نه وو. د مې د ۴مې غورځنګ د ایډیالوژي او د کادرونو په لحاظ په ۱۹۲۱م کې د چین د کمونیست ګوند د تأسیس او همدارنګه د مې د ۳۰مې  د غورځنګ او د شمال په لور د لښکروړلو چمتووالی ونیوه. هغه وخت کې د بورژازۍ روڼآندو د مې د ۴مې د غورځنګ ښي اړخ جوړاوه، او په دویم پړاؤ کې د هغو ډېرکیو له دښمن سره جوړ جاړی وکړ او له ارتجاع سره یو ځای شول.

په دویم پړاؤ کې چې اصلي ځانګړنه یې د کمونیست ګوند تأسیس، د مې د ۳۰مې غورځنګ او د شمال په لورې لښکرو وړل وو، د درې طبقو متحده جبهه، چې د مې د ۴مې د غورځنګ په بهیر کې جوړه شوې وه، ټینګه پاتې شوه او تکامل یې وکړ او د بزګرانو طبقه هم له هغه سره ګډون ته راوښکل شوه او په سیاسي ډګر کې له دې طبقو څخه ګډه یوه متحده جبهه جوړه شوه، د ګومیندان او د کمونیست ګوند تر منځ دا

هماغه لومړنۍ همکاري وه. د ډاکټر سون یاتسین لوی والی پدې کې دی چې هغه نه یواځې د ۱۹۱۱م ستر انقلاب مشري وکړه(سره له دې چې دغه انقلاب د زاړه دوران یو دموکراتیک انقلاب ؤ)، بلکه وتوانیده، چې «د نړۍ د بهیرونو په څارلو او د خلکو اړتیاو ته په ځواب ویلو سره» درې بنسټیز انقلابي سیاسي اصله، چې د روسیې سره یووالی، د کمونیست ګوند سره همکاري او له بزګرو او کارګرو څخه ملاتړ ؤ، وړاندې کړي او د خلکو درو اصلونو په اړه نوی تفسیر په لاس راکړي، او په پایله کې د خلکو درې نوي اصله، چې درې سیاسي بنسټیز اصلونه یې احتوا کول، رامنځته کړي. تر هغه وخته د خلکو درې اصلونو له ښوونې او روزنې، اکاډمیکو کړیو (محفلونو) او له نووځوانانو سره چندانې اړیکه نه لرله، ولې چې، د امپریالیزم ضد، د ټولنیز فیوډالي رژیم ضد او د فیوډالي فرهنګي فکرونو ضد نه ؤ. تر هغه وخته پورې هغه د خلکو درې زاړه اصله وو او د خلکو تر پامه لنډ مهاله یو بیرغ، یوازې د سیاسي مانورونو لپاره یو بیرغ راته، چې د اشخاصو یوې ډلې به د دولتي ځواک تر لاسه کولو یانې دولتي څوکۍ ته رسېدلو لپاره ترېنه ګټه پورته کوله. خو وروسته د خلکو درې نوي اصله رامنځته شول، چې درې بنسټیزه سیاسي اصلونه یې احتوا کول. د ګومیندان او د کمونیست ګوند د همکارۍ تر سیوري لاندې او د دواړو ګوندونو انقلابي غړو په هڅو د خلکو درې نوي اصلونه په ګرد چین کې د ښوونې او روزنې، د اکادمیک محفلونو په یو شمېر وګړو او د پوهنځیو ځوانو زده کوونکو په پرګنو کې خواره شول. دغه پایله په بشپړ ډول پدې مسئلې پورې تړلې، دلالت کوي چې د خلکو درې لمړني اصلونه د نوې دموکراسۍ امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد درو اصلونو ته تکامل وکړ، چې درې بنسټیزه سیاسي اصلونه احتوا کوي؛ پرته له دغه تکامله څخه یې د افکارو خپرېدل ناشونی وو.

د دغه دورې په اوږدو کې د خلکو درې انقلابي اصله د ګومیندان او د کمونیست ګوند او همدارنګه د بیلابیلو انقلابي طبقاتو د متحدې جبهې سیاسي ستن وګرځیده او له هغه ځایه چې «کمونیزم د خلکو د درو اصلونو ښه دوست دی»، دغه دوودوکتورینو یوه متحده جبهه جوړه کړه. له طبقاتي لید ټکي دغه جبهه د پرولتاریا، بزګرې طبقې، ښاري وړوکې بورژوازي او بورژوازۍ څخه مرکبه وه. په هغه دوره کې دې دوو ګوندونو، چې کمونیست ګوند د «لاربښود اونیزه» او ګومیندان «جمهوري ورځپاڼه» په شانګهای

کې او د بېلابېلو سیمو ورځپاڼې یې د خپل عمل مرچل ګرځولې وې، په ګډه یې امپریالیستي ضد نظریې تبلیغ کړې، په ګډه د کنفسیوس د لمانځنې او د کنفسیوس د مکتب د زده کړو د مطالعې پر بنسټ فیوډالي ښوونو او روزنو پر ضد، په پخوانۍ بڼه او د لیکلو په زاړه سبک ژبنیو زاړو فیوډالي ادبیاتو پر ضد راپورته شول او نوي ادبیات یې، چې مضمون یې د امپریالیزم او فیوډالیزم پر ضد ؤ، او د نوي سبک د لیکلو ژبه وه، تبلیغ کړه. دګوان دون او د شمال په لورې لښکروړلو په وخت کې یې د چین په پوځونو کې امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد افکار ورالقاح کړل او په پایله کې یې هغوې په نوې فکر سمبال کړل. د بزګرو میلیونونو پرګنو په منځ کې د «مړه دې وي فاسده او بډې اخیستونکي مامورین» او د «مړه دې وي سیمه ایز زورواکي او شریر متنفذین» شعارونه ورکړل شول او سترې بزګریزې انقلابي مبارزې پیل شوې. د دې ټولو او همدارنګه د شوروي اتحاد د مرستې تر څنګ لاندې د شمال په لور په لښکروړلو کې بریا تر لاسه شوه. خو ستره بورژوازي چې ماذې ځواک ته ورسیده، سم دلاسه یې د دغه انقلاب ټغر ټول کړ او یوه نوې سیاسي وضعه رامنځته شوه.

دریم پړاؤ، د ۱۹۲۷م څخه تر ۱۹۳۷م پورې نوې انقلابی دوره ده. د هغو وروستیو بدلونو له امله، چې نږدې د تېرې دورې په ورستیو کې د انقلاب په اردو کې رامنځته شول، د چین ستره بورژوازي د امپریالیستانو او فیوډالي ځواکونو انقلابي ضد اردو سره یو ځای شوه او ملي بورژوازي هم د دوی شاته لاړه او له هغو څلورو طبقو څخه، چې په لمړي سر کې د انقلاب په اردو کې وو، یواځې درې طبقې پاتې شوې، یانې پرولتاریا، د بزګرو طبقه او د وړې بورژوازۍ نورې برخې(له هغې جملې انقلابي روڼ آندي)؛ پدې ترتیب د چین انقلاب ناچار یوې نوې دورې ته ننوت، چې د چین کمونیست ګوند په انقلاب کې په یواځې توګه د پرګنو مشري کوله. دغه پړاؤ له یوه اړخه د انقلاب ضد د «محاصرې او ځپلو» د عملیاتو شاهد ؤ او له بله اړخه د انقلاب ژور نفوذ شاهد ؤ. دغه وخت کې د انقلاب ضد د «محاصرې او ځپلو» عملیات په دوه ډوله وو: یو پوځي او بل فرهنګي او همدارنګه د انقلاب ژور نفوذ هم دوه ډولونه درلودل: یو کلیوال او بل فرهنګي. د امپریالیستانو په لمسون د چین او د ټولې نړۍ ارتجاعي ځواکونه ددغه دوه ګوني عملیاتو «محاصرې او ځپلو» لپاره راغونډ شول، هغه عملیات چې لس کاله اوږده

شول او د قساوت او بېرحمۍ له نظره په نړۍ کې بې ساري وو، او پدې لړ کې په سلګونو زره کمونیستان او ځوان زده کوونکي ووژل شول او همدارنګه په میلیونونو بزګر او کارګر تر ځناوریزو ځارنو لاندې ونیول شول. د هغو کسانو ترنظره، چې ددغو عملیاتو مشري یې درلوده، داسې راتلل، چې کېدای شي کمونیزم او د کمونیست ګوند «یوځل او تل لپاره له منځه یوسي». خو پایله اپوټه شوه، د «محاصرې او ځپلو» دواړه عملیات له رسوا کونکې ماتې سره مخ شول. د پوځي «محاصرې او ځپلو» عملیاتو پایله د جاپان پر ضد د مقاومت لپاره د شمال په لور د سره لښکر لاروهل او د فرهنګي «محاصرې او ځپلو» عملیاتو پایله د ۱۹۳۵م کال د دسمبر په ۹مې د ځوانانو د انقلابي غورځنګ رامنځته کېدل وو. د «محاصرې او ځپلو» دغه دوو عملیاتو ګډه پایله د ټول هېواد د خلکو ویښېدل وو. دغه درې پایلې ټولې مثبتې دي. خو تر ټولو حیرانونکې خبره دا وه، چې که څه هم د ګومیندان تر واک لاندې سیمو په فرهنګي مؤسسو کې کمونیست ګوند مطلقن بې دفاع ؤ، څه وشول، چې د ګومیندان د فرهنګي «محاصرې او ځپلو» عملیات هم سخته ماته وخوړه؟ آیا دغه خبره انسان فکر کولو او ژورېدو ته نه اړباسي؟ سم د «محاصرې او ځپلو» همدې عملیاتو په ترڅ کې وو، چې له لوسیون، د کمونیزم لاروي، څخه د چین د فرهنګي انقلاب ستر شخصیت جوړ شو.

د انقلاب ضد لخوا د «محاصرې او ځپلو» عملیاتو منفي پایله زمونږ په هېواد باندې د امپریالیستي جاپان یرغلی دی. دا دی د هغې سختې کرکې اصلي لامل، چې ټول خلک یې ان نن ورځ هم د کمونیست ګوند پر ضد د لس کلنې جګړې له امله په ځان کې احساسوي.

د هغو مبارزاتو په ترڅ کې، چې په دې پړاؤ کې رامنځ ته شوې، د انقلاب جبهه، په کلکه د نوې دموکراسۍ او د خلکو د پرګنو د درو امپریالیسي ضد – فیوډالي ضد نویو اصلونو په موضع کې پاتې شول، حال دا چې د انقلاب ضد جبهې د ځمکو خاوندانو او لویې بورژوازۍ د یووالي پر بنسټ – هغه یوالی، چې د امپریالیزم تر مشرۍ لاندې ؤ - زورواکی رژیم ټینګ کړ. دې زورواکۍ په سیاسي او فرهنګي ډګر کې د سون یاتسن درې سیاسي بنسټیز اصلونه تر پښنو لاندې کړل، د ده د خلکو درې نوي اصله یې هم له منځه یووړل او د چین ولس یې په لویې بدمرغۍ کې ډوب کړ.

ځلورم پړاؤ د جاپان ضد د مقاومت د جګړې اوسنی پړاؤ دی. د چین د انقلاب په کږلېچونو (پیچ و خم) کې، د ځلورو طبقو متحده جبهه بیا رامنځته شوه، خو لمن یې لا نوره پراختیا وموندہ، پورتنی لړ (قشر) یې د واکمنې طبقې ډیري استازي احتوا کوي، منځنۍ طبقه یې ملي بورژوازي او وړه بورژوازي جوړوي او لاندینۍ طبقه یې ټول پرولتران ، پدې توګه د ولس ټول ټولنیز لړونه د یووالي غړي شول او د جاپان امپریالیزم پر ضد یې پرېکړنده مقابله وکړه. د دې دورې لومړۍ پړاؤ د اوهان د راپرځېدو څخه وړاندې دی. پدې پړاؤ کې د هېواد په ټولو ډګرونو کې په هره برخه کې یو ژوندی اتموسفیر په سترګو لګېږي، په سیاسي ډګر کې د دیموکراتیزه کولو په لور ګروهنه او په فرهنګي ډګر کې نسبتن پراخو راغونډېدلو شتون لاره. د اوهان له راپرځېدو وروسته دویم پړاؤ پرانستل کېږی، چې د هغې په ترخ کې سیاسي وضعې ډېر بدلونونه موندلي: د بورژوازۍ یوه برخه دښمن ته تسلیمه شوې او پاتې برخه یې هم لیواله ده، چې د مقاومت جګړه ژرتر ژره پای ته ورسوي. د یه چینګ، جان جیون مای او نورو ارتجاعي کړنې او همدارنګه د رسنیو او د وینا آزادیو له منځه وړل په فرهنګي ډګر کې د دې وضعې آزانګ دی.

د دغه بحران د له منځه وړلو لپاره اړینه ده، تر څو د هغه ټولو افکارو پر ضد مبارزه وشي، کوم چې د مقاومت جګړې، یووالي او پرمختګ سره مقابلې ته راپورته شي؛ تر هغه وخته چې دا ارتجاعي افکار راونه پرځول شي، د مقاومت په جګړه کې د بري هیله نشته. ددې مبارزې راتلونکی په څه ډول دی؟ دا هغه مهمه موضوع ده، چې په ټول هیواد کې د خلکو فکر یې له ځانه سره بوخت کړی. د کورنۍ او نړیوالې اوضاع په پام کې نیولو سره هر څه چې وي، ځینې ستونزې د مقاومت جګړې په لار کې درېدلي، د چین خلک به پای کې بریالی شي. د مې د ۴مې له غورځنګ وروسته شل کلن پرمختګ نه یواځې تر هغه وړاندې اتیا کلن پرمختګ څخه لا پورته دی، بلکه د چین د تاریخ څو زره کلن پرمختګ هم شاته پاتې کوي. په داسې حال کې آیا نشو کولای وړاندوینه وکړو، چې چین به راتلونکو شلو کلونو کې څومره پرمختګ وکړي؟ د کورني او بهرني تورو ځواکونو واکې شلېدلي یرغل ولس له بدمرغۍ سره مخ کړ؛ خو که دغه یرغل د هغه ځواک نښه وي، چې لا تر اوسه د تورو ځواکونو په لاس کې دی، له بلې خوا دا ثابتوي، چې دا ددوې

وروستې لاس او پښې وهل دي او د خلکو پرګنې ورو ورو بريا ته نږدې کيږي. د چين وضعيت، د ختيځ وضعيت او د ټولې نړۍ وضعيت په دا شان دی.

## ۱۴ ــ د فرهنګ د ځانګړنې په مسئله کې انحرافات

هر يو نوی د مبارزې له ګران او ستونزمن تناره نه راوځي. د نوي فرهنګ لپاره هم، چې شل کاله يې کړلېچنه لار وهلې او پدې لار له درو پيچومو تير شوی، وضع پدې ډول ده. ټول ښه او بد شيان په دې ازموينو کې څرګند شوي دي.

د بورژوازۍ سرسختي د سياسي ځواک مسئلې په شان په فرهنګي مسئله کې هم له تيروتنې سره مخ دي. دوی د چين د نوی پړاؤ له تاريخي ځانګړتياوو څخه بې خبر دي او د خلکو د پرګنو د نوې دموکراسۍ فرهنګ په رسميت نه پيژني. د هغوې د حرکت پيل د بورژوازۍ زورواکي ده، چې په فرهنګي ډګر کې د بورژوازۍ د زورواکۍ فرهنګ په توګه ځليږي. په اصطلاح د امريکا او اروپا د مکتب[۱۸] د فرهنګيانو يوه برخه (زه يوازې يوه برخه وايم) چې په واقعيت کې د ګوميندان «د کمونيستانو ځپلو» سياست په فرهنګي ډګرکې تأييد کړی ؤ، ګواکې اوس د «کمونيست ګوند د تحديد» او د «کمونيست ګوند انحلال» هم تأييدوي. دوی غواړي چې کارګر او بزګر نه په سياسي چارو او نه په فرهنګي چارو کې سر پورته کړي. د بورژوازۍ د سخت دريزو لار تړلې لار ده؛ د هغې لپاره اړين کورني او بين المللي شرايط شتون نه لري، لکه څنګه چې د سياسي ځواک په هکله يې شتون نه لاره. له همدې کبله لا ښه ده، چې د دې فرهنګي زورواکي ټغر هم «ټول شي».

تر هغه ځايه چې د ملي فرهنګ موخې پورې اړه لري، کمونيستي ايډيالوژي لارښود رول لري؛ برسېره پر دې مونږ بايد خپله ټوله هڅه د کارګرې طبقې په منځ کې د سوسياليزم او کمونيزم د پراختيا لپاره وکاروو او د پرګنو نورې برخې بايد په وړه توګه او ګام په ګام د سوسياليزم له روح سره سم وروزو. خو په ټوله کې ملي فرهنګ پخپله لا سوسياليستي نه دی.

له هغه ځايه چې د نوې دموکراسۍ سياست، اقتصاد او فرهنګ د پرولتاريا تر مشرۍ

لاندې راغلي، دوی ټول د سوسیالیستي عامل درلودونکي دي، هغه هم نه عادي عامل، بلکه ټاکونکی عامل. سره له دې په ټوله کې سیاست، اقتصاد او فرهنګ د نوې دموکراسۍ ځانګړتیا لري، نه سوسیالیستي ځانګړتیا. ځکه د انقلاب په اوسني پړاؤ کې، چې اساسي بنسټیزه دنده یې په عمده ډول د بهرني امپریالیزم او د داخلي فیوډالیزم پر ضد مبارزه ده، یو بورژوا ـ دموکراتیک انقلاب دی نه د پانګوالۍ د راپرځولو په مووخه یو سوسیالیستي انقلاب. د ملي فرهنګ په هکله هم، که نظر په دې وي چې ملي فرهنګ په ټوله کې اوس سوسیالیستي دی او یا باید سوسیالیستي واوسي، تیروتنه ده. دا په دې مانا ده، چې د عمل فوري کړنلارې پر ځای د کمونیستي ایډیالوژۍ خپرول ونیول شي او کمونیستي دریز غوره کول او د مسایلو په څېړلو، د زده کړو په لوستلو، د کارونو په سرته رسولو او د کادرونو په روزلو کې د کمونیستي اسلوبو کارول د چین د دموکراتیک انقلاب په پړاؤ کې ګردې زده کړې او ملي فرهنګ سره اشتباه ونیول شي. ملي فرهنګ له سوسیالیستي محتوا سره باید د سوسیالیستي سیاست او اقتصاد آزانګوونکي (منعکس کونکې) وي. له هاغه ځایه چې زمونږ په سیاست او اقتصاد سوسیالیستي عامل شتون لري، زمونږ په ملي فرهنګ کې هم سوسیالیستي عامل آزانګه (منعکس) کېږي؛ خو که خپله ټولنه په ټوله کې په پام کې ونیسو، مونږ لا تر اوسه په بشپړ ډول سوسیالیستي سیاست او اقتصاد ندی ټینګ کړی او پر دې بنسټ نشو کولای یو بشپړ سوسیالیستي ملي فرهنګ ولرو. له هغه ځایه چې د چین اوسنی انقلاب د نړیوال پرولتاریایې ـ سوسیالیستي انقلاب یوه برخه ده، د چین اوسنی نوی فرهنګ هم د نړیوال پرولتاریایې ـ سوسیالیستي د نوې فرهنګ یوه برخه او د هغه ستر ملاتړ دی؛ که څه هم دغه برخه د سوسیالیستي فرهنګ مهم عامل لري، سره له هغه که خپل ملي فرهنګ په ټوله کې په پام کې ونیسو، دغه برخه نه د بشپړه سوسیالیستي فرهنګ په توګه، بلکه د خلکو د پرګنو امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد نوي فرهنګ په توګه د نړیوال نوي پرولتاریایي – سوسیالیستي فرهنګ سره په ترکیب کې ګډېږي. له هغه ځایه چې د چین اوسنی انقلاب د چین د پرولتاریا له مشرۍ څخه نه بېلېدونکي دی، د چین اوسنی نوی فرهنګ هم د چین د پرولتاریایې فرهنګي فکرونو له مشرۍ یانې د کمونیستي ایډیالوژۍ د مشرۍ څخه نه بېلېدونکی دی. خو هسې چې دغه مشري په اوسني پړاؤ کې په امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد سیاسي

او فرهنګي انقلاب په لار د خلکو د لارښونې په مانا ده، په ټوله کې د نوي ملي فرهنګ محتوا د نوې دموکراسۍ سره اړیکه لري نه د سوسیالیزم سره.

اوس مهال پرته له شکه باید کمونیستي ایډیالوژۍ ته پراختیا ورکړل شي او د مارکسیزم ـ لنینیزم د لوستلو په هڅه کې زیاتوالی راشي؛ پرته له دې پراختیا او لوستلو نه د چین انقلاب لارښوونه د راتلونکي سوسیالیزم پړاؤ ته کولای شو او نه اوسنی دموکراتیک انقلاب بریا ته رسولای شو. سره له دې مونږ نه یوازې د کمونیستي ایډیالوژیک سیستم او رژیم تر منځ له یوې خوا او د نوې دموکراسۍ د عمل کړنلارې د پلي کولو کې له بلې خوا باید توپیر وکړو، بلکه د کمونیستي تیوریو او اسلوبونو، چې د مسایلو د څېړلو، د زده کړو په لوستلو، د چارو سرته رسولو او د کادرونو په روزلو کې یې کاروو، او د نوې دموکراسۍ په منځ کې، چې له ګرد ملي فرهنګ لپاره ټاکل شوې، توپیر قایل شو. پرته له شکه وړه نه ده، چې دا دواړه یو له بل سره اشتباه ونیسو.

پدې توګه لیدلی کېږي، چې د چین د نوې ملي فرهنګ محتوا په اوسني پړاؤ کې نه د بورژوازۍ د فرهنګ زورواکې ده او نه سوچه پرولتاریایې سوسیالیزم، بلکه د خلکو د پرګنو امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد نوې دموکراسي ده، چې د پرولتاریایې ـ سوسیالیستي فرهنګي فکرونه یې مشري کوي.

## ۱۵- ملي، علمي او ولسي فرهنګ

د نوې دموکراسۍ فرهنګ ملی فرهنګ دی. دا فرهنګ د امپریالیزم د ناتار پر ضد مبارزه کوي او د چین د ولس خپلواکي او عزت سر لوړي ساتي. دا فرهنګ زمونږ د ولس خپله برخه ده او زمونږ د ملي ځانګړتیاوو لرونکې ده. دا فرهنګ د ټولو ولسونو له سوسیالیستي یا د نوې دموکراسۍ له فرهنګ سره تړاو لري او له هغو سره اړیکې ټینګوي، چې له یو بل څخه اخلي او د یو بل له تکامل سره مرسته کوي او په ګډه یو نوی نړیوال فرهنګ جوړوي؛ خو دا فرهنګ مطلقن نشي کولای د هیڅ ولس له ارتجاعي او امپریالیستي فرهنګ سره په اړیکه کې شي، ځکه زمونږ فرهنګ ملي انقلابي فرهنګ دی. چین باید په پراخه کچه د بهرنیو هیوادونو پرمختللی فرهنګ جذب کړي او له

هغه څخه خپل فرهنګي خواړه چمتو کړي؛ په تیره کې دا کار خورا ناکافی ترسره شوی دی. مونږ باید هر هغه څه چې نن ترینه ګټه اخیستلی شو، جذب کړو او هغه هم نه یوازی د اوسني وخت له سوسیالیستي او نوې دموکراسۍ له فرهنګ څخه، بلکه د بهرنیو هیوادونو له لرغوني فرهنګ څخه، لکه د بیلابیلو پانګوالو هیوادونو د روښانګرۍ له دوران څخه هم باید وړي (خوشه ها) راټول کړو. سره له دې هر هغه څه سره، چې له بهر نه راځي، باید د خوړو په څیر چلند وشي، خواړه باید په خوله کې وژول شي، په معده او کولمو کې وروزل شي، د لاړو او هاضمه تیزابو تر اغیز لاندې په دوه برخو وویشل شي: کلیوس جذبیږي او پاتی شیان دفع کیږي، یوازې په دې توګه مونږ کولای شو له هغو څخه ګټه ترلاسه کړو؛ مونږ هیچکله هم باید هغه په یو ځل تېر نکړو او یا پرته له انتقادي چلند څخه هغه جذب کړو. په اصطلاح د « بشپړه غربی کولو»[۱۹] وړاندیز تجویز ناسم لیدتکی دی. پخوا په چین کې د بهرنیو شیانو فورمالیستی جذبولو مونږ ته ستر زیانونه اړولي دي. په همدې توګه په چین کې د مارکسیزم په کارولو کې، د چین کمونیستان باید په بشپړه او په بنه توګه د مارکسیزم عام حقیقت د چین له ځانګړي پراتیک سره پیوند کړي یا په بله وینا دا حقیقت به یوازې هغه وخت ګټور وي، چې د ولس له ځانګړنو سره یو شي او ځانته ملی بڼه غوره کړي، او په کومه وجه هم باید هغه په ذهنی او فورمالیستي توګه ونه کاروو. فورمالیستي مارکسیستان یواځنی کار چې ترسره کوي، هغه دا دی، چې په مارکسیزم او د چین پر انقلاب باندې ملنډې وهي او د چین انقلاب په کربنو کې هغوی لپاره ځای نشته. د چین فرهنګ باید خپله ځانګړې بڼه ولری، یانې ملی بڼه. ملی بڼه او د نوې دموکراسۍ محتوا، دغه ده زمونږ د نن ورځې نوی فرهنګ.

د نوی دموکراسۍ فرهنګ علمي فرهنګ دی. دا فرهنګ له هر ډول فیوډالي او خرافاتی افکارو پر ضد مبارزه کوي او د حقیقت پلټنه د واقعیتونو پر بنسټ، د عینی حقیقت او د تیوري او پراتیک تر منځ د یووالي غوښتنه کوي. په دې ټکي د چین علمي پرولتاریایي آیډیالوژي کولای شي د چین له ماتریالیستانو او د بورژوایي طبیعي علومو له پوهانو سره، چې لا مترقي دي، د امپریالیزم، فیوډالیزم او خرافاتو پر ضد یوه متحده جبهه جوړه کړي؛ خو هیڅکله هم باید له هر ډول ارتجاعي آیډیالیزم سره متحده جبهه جوړه نکړي. کمونیستان کولای شي له ځینو آیډیالیستانو او ان د مذهب له پیروانو سره

د سياسي کړنو په ډګر کې امپرياليزم ضد او فيوډاليزم ضد متحده جبهه جوړه کړي، خو په کومه وجه هم نبايد د هغو آيډياليزم او مذهبي دکترين تأييد کړي. د چين د ټولنې د پرله پسې پېړيو په ترڅ کې يو لرغونی ځلانده فرهنګ رامنځ ته شوی. له همدې کبله ددغه لرغوني تاريخ د ودې او تکامل د بهير روښانه کول، د هغو ناسپېڅليتاوو څخه، چې فيوډالي خټه (سرشت) لري، د هغې پاکول، او د هغې دموکراتيک جوهر جذبول د نوي ملي فرهنګ د ودې او د ملي احساساتو پياوړتيا لپاره لازم شرط دی، خو هيڅکله هم بايد کوم شئ پرته له نيوکيز چلند څخه و نه منو. بايد د هر هغه څه، چې خوسا دي او د زاړه فيوډاليزم له واکمنو طبقو سره تړاو لري، او د لرغوني دوران ولسي (پرګنيز) عالی فرهنګ تر منځ، چې لږ ډېر دموکراتيکه او انقلابي ځانګړتيا لري، توپير وکړو. د چين اوسنی نوی سياست او نوی اقتصاد د لرغوني دوران له زاړه سياست او له زاړه اقتصاد څخه سرچينه اخلي، په هغه توګه چې د چين اوسنی نوی فرهنک د لرغونی دوران له زاړه فرهنګ څخه راوتی دی، له دې کبله مونږ بايد خپل تاريخ ته درناوی وکړو او نه دا چې د هغې د تکامل اړيکه پرې کړو. خو دا درناوی يوازې په دې مانا ده چې تاريخ ته د علم په توګه يو ټاکلی ځای ورکړو او د تاريخ ديالکتيکي ودې ته درناوی وکړو، نه دا چې د اوس مهال په زيان له تير وخت څخه ستاينه وکړو، نه دا چې هر فيوډالی زهرجن عنصر وستايو. خلکو پرګنو او ځوانو زده کوونکو لپاره دا مهمه ده، چې هغو ته لارښوونه وکړو، تر څو مخ پروړاندې وګوري او نه شا ته.

د نوې دموکراسۍ فرهنګ ولسي فرهنګ دی او له دې کبله دموکراتيک دی. دا فرهنګ بايد د زيارکښو کارګرو او بزګرو پرګنو په چوپړ کې وي، چې د چين له ټولو وګړو له ۹۰ سلنې څخه ډيرکی جوړوي، تر هغو چې په تدريج سره د هغو په خپل فرهنګ بدل شي. اړينه ده د هغو مالومات چې انقلابي کادرونو ته ورکول کېږی او هغه مالوماتو تر منځ، چې د انقلابي پرګنو په واک کې اېښودل کېږی، توپير وکړو او په عين حال کې بايد د دوی ترمنځ يووالی ټينګ کړو. انقلابي فرهنګ انقلابي پرګنو لپاره د انقلاب ځواکمنه وسله ده. انقلابي فرهنګ مخکې له دې چې انقلاب راورسيږی، په ايدئولوژيک لحاظ د انقلاب لپاره چمتووالی نيسي او د انقلاب په بهير کې، د انقلاب د عمومي جبهې اړينه او مهمه برخه ده. او انقلابي فرهنګي کارکونکي د دې فرهنګي جبهې د مختلفو درجو

قومندانان دي. «پرته له انقلابی تیوری هیڅ انقلابي غورځنګ نشي کولای شتون ولري»[۲۰].

له دې ځایه څرګندېږي، چې فرهنګي انقلابي غورځنګ په کومې کچې د انقلاب عملي غورځنګ لپاره مهم دی. دا فرهنګي غورځنګ او عملي غورځنګ دواړه پرګنو پورې اړه لري. له دې کبله د چاپان پر ضد د مقاومت په جګړه کې باید ټول مترقي فرهنګي کارکونکي خپل فرهنګي پوځ ولري او دا پوځ د خلکو پرګنې دي. انقلابي فرهنګیان، چې له ولس څخه لیرې شي، «بی پوځه سرلښکري» دي او د هغوی د اور ځواک به ونشي کولای غلیم له پښو وغورځوي. دغې موخې ته رسیدو لپاره باید تر ټاکلو شرایطو لاندې د لیکلو په ژبه کې ځني اصلاحات پلي شي، باید د وینا ژبه له ولسي ژبې سره نږدې کړو، باید پوه شو، چې د خلکو پرګنې د انقلابي فرهنګ د شتمنۍ او نه وچېدونکې سرچینه ده.

ملي، علمي او ولسي فرهنګ هماغه د خلکو د پرګنو امپریالیستي ضد او فیوډالي ضد فرهنګ، د نوې دموکراسۍ فرهنګ، د چین د ولس نوی فرهنګ دی.

د نوې دموکراسۍ د سیاست او د نوې دموکراسۍ د اقتصاد او د نوې دموکراسۍ د فرهنګ یووالی – دغه دی د نوې دموکراسۍ جمهوریت، د چین جمهوریت چې نوم یې له واقعیت سره مطابقت لري، هغه نوی چین چې مونږ یې غواړو جوړ کړو.

نوی چین زمونږ د هر یوه مخې ته درېږي، مونږ یې باید هرکلی وکړو!

د نوي چین د بیړیو د پردو څوکې د آسمان په لمن کې راڅرګندې شوې دي، باید هغوی ته ښه راغلاست ووایو او هغوی قدم ته نیکې هیلې وغواړو!

دواړه لاسونه پورته کړی، نوی چین زمونږ حق دی!

**يادښتونه:**

۱- «د چين فرهنګ» د ۱۹۴۰م کال په جنورۍ کې په ين‌ان کې رامنځته شوه او د «نوې دموکراسۍ په اړه» د لومړي ځل لپاره ددې مجلې په لومړۍ ګڼه کې خپره شوه.

۲- مارکس: «پر سياسي اقتصاد نيوکه» سريزه.

۳- مارکس: «د فويرباخ په اړه تزونه» ۱۱م تز.

۴- سټالين: «د اکتوبر انقلاب او ملي مسئله».

۵- لنين: «امپرياليزم د پانګوالۍ تر ټولو لوړ پړاؤ».

۶- موخه د شوري پر ضد د يو لړ جګړو څخه دی، چې انقلاب ته د چانکايشک له خيانته وروسته د ګوميندان د حکومت له خوا پلې شوې: د ۱۹۲۷م کال د دسمبر په ۱۳مه ګوميندان د شوروي اتحاد د قونسل مرستيال په ګوانجو کې وواژه او يوه ورځ وروسته په نانکن کې د ګوميندان دولت له «شوروي سره د اړيکو پرې کولو فرمان» صادر کړ او په دې توګه يې په بيلابيلو ولايتونو کې د شوروي قونسلانو په رسميت پېژندل بېرته واخيستل او د شوروي ټولو سوداګريزو موسسو ته يې دستور ورکړ، چې هرډول فعاليت دې پای ته ورسوي. د ۱۹۲۹م په د اګست کې چانکايشک د امپرياليستانو په لمسون په شمال لويديځ کې د شوروي اتحاد پر ضد په يو لړ پارونکو کړنو لاس پورې کړ، چې په يو لړ پوځي نښتو يې پای وموند.

۷-کمال له لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته د ترکيې سوداګريزې بورژوازۍ استازی ؤ. له لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته د انګلستان امپرياليستانو خپل د يونان ګوډاګی دولت وپاراوه، چې پر ترکيې وسله وال يرغل وکړي؛ د ترکيې خلک چې د شوروي اتحاد له مرستې برخمن وو، په ۱۹۲۲م کال کې د يونان پر پوځ بريالی شول او په ۱۹۲۳م کې يې

کمال د ترکیې جمهوری ریاست ته وټاکه. سټالین وویل: «د کمالیست انقلاب د ملی سوداګریزې بورژوازۍ د پورتني قشر انقلاب دی، چې د بهرنیو امپریالیستانو پر ضد په مبارزه کې رامنځته شوی او ماهیتن په خپلې راتلونکې ودې او پرمختګ کې به د کارګرانو او بزګرانو پر ضد د هر ډول ځمکني انقلاب د احتمال پر ضد لوری ومومي.» سټالین ته دی مراجعه وشي: «د سون یاتسن پوهنتون له زده کونکو سره خبرې اترې».

۸- د ملګري مائوتسه دون موخه دلته له جان جیون مای او د هغه له ملګرو څخه ده. د مې د ۴ مې له غورځنګ څخه وروسته جان جیون مای په ښکاره توګه د پوهې پر ضد مبارزې ته راولاړ شو او د په اصطلاح «معنوی فرهنګ» یانې متافزیک په اړه یې تبلیغ کاوه، او په «متافریک پلورونکې» مشهور شو. هغه د ۱۹۳۸م په دسمبر کې د چانکایشک په امر «ښاغلي مائوتسه دون ته پرانیستلی لیک» خپور کړ او په هغه کې یې د جاپاني یرغلګرو او چانکایشک په ګټه او د اتم او څلورم پوځ او د شنسی ـ ګان سو- نین سیا د سرحدي سیمې د راپرځولو لپاره بې مسئولیته تبلیغات په لاره واچول.

۹- د کمونیست ګوند او ګومیندان تر منځ د همکارۍ د ټینګېدو په اړه دې د چین کمونیست ګوند د ۱۹۳۷م کال مانفیست ته مراجعه وشي.

۱۰- سون یاتسن: «د خلکو هوساینې د اصل په اړه وینا» دویمه برخه، په ۱۹۲۴م کې.

۱۱- خبره د «ویتالیزم» تر عنوان لاندی کتاب په اړه ده، چې د چانکایشک د پټو سازمانونو یوه رئیس د مرتجع او چوپړ میرزالیکونکي، چن لی فو له لخوا لیکل شوی او د هغه په ننګین نامه خپور شوی دی. دا کتاب چې له چټیاتو اوبدل شوی، د ګومیندان فاشیزم ستایې.

۱۲- هغه شعار، چې په بې شرمۍ سره د ین سی شان د ځمکو خاوندانو استازي، پوځي زورواکي، او د شان سی د سترو کمپرادورانو له خوا تبلیغېده.

۱۳- وان جین وی وروسته له هغې چې په ۱۹۲۷م کې یې له انقلاب سره خیانت وکړ، یوه لیکنه یې وکړه، چې عنوان یې «په دوه جبهو کې مبارزه» وه.

۱۴- سټالین په «یوګوسلاوی کې د ملی مسئلې په اړه» خپله وینا کې، چې د ۱۹۲۵م د مارچ په ۳۰ مه یې د کمونیستی انټرناسیونال د اجرائیه کمیټې په یوګوسلاوي

کميسيون کې کړې، وويل: «...بزګر د ملی غورځنګ بنسټيز ځواک دي، له پوځ پرته يو ملي پياوړی غورځنک به شتون ونلری او هم نشي کولای منځته راشي... ملی مسئله په واقعيت کې يوه بزګريزه مسئله ده.»

۱۵- په کمونيست ګوند کې دننه د ملګري مائوتسه دون په اړه د ځينو دګماتيستانو ملنډيزه خبره ده، هغه هم په دې اړوند، چې دی په کليو کې انقلابي اډوته اهميت قايل ؤ. دلته ملګری مائو تسه دون د هغو د بيان له توګې څخه کار اخلي، د هغې لپاره، چې د کليو دې انقلابي اډو اهميت په ګوته کړي.

۱۶- د مدرنو ښوونځيو له سيستم څخه موخه د اروپا او امريکا پانګه والو هېوادنو د هغه وخت د زده کړې سيستم ؤ. د امپراتورۍ د ازموينو سيستم په چين کې د فيوډالی ازموينو پخوانی سيستم ؤ. د ۱۹مې پيړۍ په وروستيو کې د چين نوښتګرو روڼآندو د امپراتوري ازموينو د سيستم راپرځول او د مدرنو ښوونځيو د سيستم ټينګول تبليغول.

۱۷- د ۱۹۱۹م د مې د ۴ مې هېوادپاله غورځنګ د جون په لومړيو کې نوي پړاؤ ته راورسېدو. د جون په ۳مه د پکن زده کوونکو ځينې غونډې ترتيب کړې او په غونډو کې د ويناوو په ترځ کې يې د پليس او پوځ د ټکونکو عملياتو پر ضد اعتراض وکړو. د زده کوونکو تر اعتصاب وروسته د شانګهای، نانکن، تيانزين، حان جو، اوهان، جيوجيان او د شان دون او ان هوی کارګرو او سوداګرانو هم لاس په اعتصاب پورې کړ. د مې د ۴مې غورځنګ له دې وروسته د پرولتاريا، ښاري وړوکې بورژوازۍ او ملي بورژوازۍ په ګډون په يوه پراخ پرګنيز غورځنګ بدل شو.

۱۸- د اروپا او امريکا د مکتب له فرهګيانو څخه موخه د هوشي په استازيتوب د وګړو يوه ډله ده.

۱۹- «بشپړه غربی کول» د ځينو بورژوايي پوهانو نظر ؤ، چې د لويديځ بورژوايې فرهنګ ته، چې دوران يې تير شوی ؤ او په لمړې درجه د انديويدوآليزم آزانګوونکی (منعکسوونکی) دی، پرته له قيد او شرطه د ستاينې په نظر کتل. هغوی ددې پلويان وو، چې چين بايد په ټولو شيانو کې د امريکا او اروپا پانګوالو هيوادونو تقليد وکړي او دا يې «بشپړه غربی کول» نومول.

۲۰- لنين: «څه بايد وکړو؟» لومړی څپرکې، ۴ مه برخه.

...
پدې ټولنه کې مسلط سیاست او اقتصاد مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي سیاست او اقتصاد دی او مسلط فرهنګ هم، چې ددغه سیاست او اقتصاد آزانګ دی، هم مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه فیوډالي فرهنګ دی. زمونږ انقلاب سم د دغو مسلطو سیاسي، اقتصادي او فرهنګي ډولونو پر ضد دی. هغه څه چې مونږ یې غواړو راوپرځوو، سم همدا زوړ مستعمره، نیمه مستعمره او نیمه‌فیوډالي سیاست او اقتصاد دی او همدا زوړ فرهنګ دی، چې د هغه په چوپړ کې دی. او هغه څه چې مونږ یې غواړو رامنځته کړو، د دغو مقابل اړخ یانې د چین د ولس نوی سیاست، نوی اقتصاد او نوی فرهنګ دی.

**مائوتسه‌دون**




ژباړونکی او ډیجټال خپرونکی: محسن خپرندویه
mohsinpubs.blogspot.com